زما اميروې ، تالی شتې اوتو کړې خور شوې زما
زما سر داره ! ته مرئې وظيفه خور شوې زما

قسم په هغه رب ،چه ته ئې دخدمت دعوه ګير
چه ئې د حور و د غلما نو ، د جنت دعوه ګير

توره را وا خله ، خيټه هېر ه کړه ميدا ن ته ځه
ستی پتی شه ، په مستئ کور د جانان ته ځه

ګنی پروبيزې ، پهپيتی کښې په حلوا ننې ياره
جنت دې باپلو ، د تهپير وپه سودا کښې ياره

دوسی ګرانه ده ، د لوزې نه کاکا جنتی !
تپ زمری شه دی ، له ځرپې مېزې زما جنتی !

دسا مری له زرو شه ، ملنګی د موسی
دزر پرست نه ، يار پرست شه دی زما جنتی !

قسم دحورو په مستئ ، او په خندا د يار
قسم پهشرنګ اوپه نسيم ، اومشنولا ديار

قسم په سترګو په ښايست ، اوپه ځوانئ د دلبر
قسم پـه سازاو په سرود ، اوپه تنا ديار

ته سجدې زر وته کړې ، ما ته نوم د يار اخلې
شفق ګاڼه کړې ، په بدل کښې د ګل خار اخلې

راځه چه زه درته ، جنون او مستی وښيمه
راځه چه زه درته ، محبوب پرستی وښيمه

سرداری نه کيږي د توري د مستئ نه بغير
الله ليدی نه شي ، د حسن پرستئ نـه بغير

سکندری قلندری ، دواړه سرور ځواړی
دواړه مستی او ځوانمرنی ، حندا غرور ځواړی

ته خوجنت کښې ، مزې ددنيا ګوره
برېنډه حوره ،اوترسګوپه حلوا ګوره

دشا تو نهر او كنده ول دشرا بو ړك
نمكين غليمان اوښا نك دكبا بو ړك
ياره چه شوندې نيسى ، نوحوري به په څه ښكلوم ؟
چه كولمې خاورې شي- كور كوري به په څه هضموم

## وا اوره جنتي !

جنت يو حال دى ، دعشق دمستۍ يو رنګ
جنت يوشرنګ د ننګرو - دځو انى غورځنګ
جنت نازك دى ، دګل دارمان هسې
جنت ښيسته دى ، زما دجانان هسې
جنت دريا ب يو ، دمينې او شان دى
هره قطره يې سپوږمۍ -هرڅاڅكى جهان دى

## شان اوشرنګ

فلسفي

دا سوزاو ساز داشان او شرنګ
يو سوري دوخت دا خيال او رنګ
دا اوښ كاروان دا سحر مانښام
دا ګوټي اوشونډې او مى اوجام
ا ميد او خندا او ژړا اوخيام
دا ګل دا ساز داشان داشرنګ
يوسوري دوخت داخيال اورنګ
دا زور دا زر د تورو برق
دعا او ژړا او دځورو برق
دا برق: سروشونډو مغرورو برق
دا چال او جمال داخيال اورنګ
اړنګ دوړ نګ سپاري تنګ
دا ښكلى كاته په نياز كاته
دا ورو نازك په اندا ز كاته

دا لړو ګنبي تا دسپوږدمۍ مخ
نرګس ګنبي پټ پټ دا یاز ګاته

دا مینه رنګینه داشان اوشرنګ
یوسوري دوخت دخیال او رنګ

دا ناچ داو لکو بهار او ګل
ما شام او خیام او ستار او ګل
ګلزار او چغار او خمار او ګل

داسر اوسر ور اوشان اوشرنګ
یوسوري دوخت دخیال او رنګ

## شاعر :

نا مړه ! ته سترګې دیار نه وینې
دسترګو سره وینې خمارنه وینې

ته ترنګ او ټکور او سرود وینې
مستي او جنون د دلدار نه وینې

دا سوز او ساز داشان او شرنګ
یو تار د دلدار دخمار اورنګ

دا ښکلي ګاته په نیاز ګاته
داور و ناز ك په انداز ګاته

دا لړو ګنبي « تا » دسپوږمۍ دمخ
نرګس ګنبي پټ پټ دا یاز ګاته

دا مینه رنګینه داشان اوشرنګ
یو تار د دلدار داخمار او رنګ

دا ښکلي ګاته په نیاز ګاته
داورو ناز ك په انداز ګاته

دا ناچ دلو لکو بهار او ګل
ګلزار او نسیم اوستار او دل

سري شوندي د یار دسپرلي په شان
ژوندی کړي مستي او بهار او ګل

دا سر او سرور او شان او شرنګ
يو تار د دلدار د خمار او رنګ

سپې دل د ګــلاب او خندا د يار
ګـا زه ګـا تــه په رضا د بـار

آند از د مستۍ او تول د غم
سرې ستر ګې او شوندې زمـا د يـار

دا مست مـا ښام ګېنې د ژوند غورځنګ
يـو تـار د دلـدار اوخمار او رنګ

دا اوښ کـاروان دا سحر مانښام
دا دو تې او شوندې او مې او جام

دا تـلـه پـه اميد په ايمان وزور
دا تـلـه پـه مستۍ پريوا ته د خيام

دا ګل او ساز او شان او شر نګ
يو تار د دلدار د خمار او رنـګ

## ترانه

نه ما سره زړ نه مرجان ښته دی
نه ما سره ښته د لاو نوړ ؛ (۱)
جانانه ! جانان د ملنګ تې تـه
ملنګ سره وی د سوا لو نوړ ؛

ما تا له ړالي ، راوړې ده
و طـه ! مستي او ځوانی زما
سره وینه تو ده او زړه ګی نر
نر توب او پښتو او خانی زما

زه ځان او جهان به دلبر ږد مه
زه پښو ګښې جانان ته ځيګر ږد مه
زه مست دا سې مست ننګيا لی يمه
فقير ته کچکول ګښې خپل سر ږد مه

زه مست او سرشار او مجنون يم
زه ځوی ننګيا لی د پښتون يم
لوګی شه له تا دا ځوانی زما
نر توب او پښتو او خانی زما

(۱) د زری ․

زه سراو سرور صدقه و رکوم
د سترګو د نور صدقه ورکوم
زه ژوند او ځواني بالاکومه نن
مستي او غرور صدقه ورکوم

دا سر خپل جانان ته بښلی دی
خمار مې رحمان ته بښلی دی
خدا په دلبر لوګی کومه زه
ما هوش بیا نو ته بښلی دی

زه جوش او جنون لوګی کومه له یار
زه تند او تکور صدقه ورکوم
زه بنیست او مستي ستا په پښو زدمه
زه مینه او زور صدقه ورکوم

ره ورك ایو نی د منصور پـه شان
لیلی لـه په تیك کښې قـمـر زدم
زه مست د اسې مست ننګیالی
فقیر په کچکول کښې خپل سر زدم

خوږه ما سره زره مرجان شمه دی
په ما سره شته د لالونو دار
جانانه! جانان د ملنګ یې ته
ملنګ سره وی د سوالونو دار

## شاعر او لیلی

شاعر: ـ د اږو ندون او مستي او خندا زما
د ځواني او تاوده بودوه ورځې
د امې سترګو کښې ستاد شونډو رنګ
زور د تور پلو دی بودوه ورځې

اخر تلو نکی هغو تیارو ته یم
چه د کومو تیارو نـه راغلی یم
اخر ځم بـه بیـا هغـو ګـو تـو لـه
کومو ګوتو چـه زه غځولی یم

د اخوا نی لکه د سپر لی مـا ښـا م
یو لمحه د ساز یو قطر ه د نـو ر
د اخندا مسا نه حیـر ا نه ستا
یو جهان د ر نګ یو ه ذر ه د نو ر

ستا د ستر ګو جا نا نو مسرو ر و خو ند
ستا د شوندوحو ږ و او مغرو ر و خو ند
ستـا د ګـو تو پستو ا و مخمو ر و خو ند
کړ پیـکه د شرا بو ا و حو ر و خـو ند

د ا د ستر ګو ښا یست اود شو ندو خو ند
او دا سو ز او ساز ا و ا ر ما ن ز ما
د نسـیم چپـه ا و د ګـل غـو تـو
او مسنا نـه حیر ا نه جـا نا ن ز ما

د ا یو تلو سکی تلونکی کا ر و ا ن د ی
یو ه قصه د ه چه و شو ه او بیر ه شو ه
د ا یـو ښکلی ښکلی تصو یر د حیـا ل
یو ه تپه ودچه‌وشو ه او هـېر ه شـو ه

بـا قـی یـو هغه د تیـا ر و جـهـا ن
بـا قـی یـو هـغه د ر نـا و طـن
با قـی یو هغـه ، خوا نـی د ا شا ن
د خـو بـو ـوا و د حـندا و طـن

**لیلی :-**

یو ه لپه تر نه وا حله ډك دریاب ده‌ینی بیزی (۱)
دا نه ولې په ژړاوې ، چه پیا له یم د ریاب‌نه یم ؟
ټول جهان د نوره ډك دی ، ګله ! ځان د نوره ډك کړه
دا نه ولې نه ملګووې چه سپوږمی او آفتاب نه یم؟

# ای نا یکه ! (۲)

ای ما لیا ره د دې چمن ! ای نا یکه د د ې جها ن !
ای د نر ګس او نسیم ر به ! ای سر دا ره د دې مکا ن
د ا خلیفه ا و مجنو ن ستا ستا د شرا بو او حو رو خان

(۱) بېبېزی . (۲) مادار - څښتن

دا ستا د کو تو جوړ ګلاب | ستا د چشما نو مخمو روشا ن
تا خو جوړ کړی ؤمینې له | ګل دې ګا ته بیا با ن له
ته خو دمینې لیوا له وې | تا حوعا شق ګا ته ځا ن له
تا خو ببنلو ا و ر حم له | ستر ګې نبیسه د لید و ګمې
تا خو خما راوخوږ والی له | شو ندې د بېڅ ند و ګمې
تا خو خپل شان او کمال له | ور کړه مو قعه د کمال اوشان
ځکه دې ستر ګو د یا ر له | ور کړه رنها د هلا ل په شا ن
تاحو پسرلی دلو با کړه جوړ | ستوری سپوږمۍ اوصبا کړه جوړ
تا ځو ا ې مستی و ر کړ ه | تا خوشیرین ا و لیلی کړه جوړ
خوزه پرونداو کونپشمکوریه | ګل او بها راو جا نا ن نه وینم
زه د غضب ا و سره او ره ډك | رنګ اومستی او خمار نه ویم
تا کړ جهان د خند انه ډك | ما کړ دشو را و غوغا نه ډك
تا کړ سرو راومستی له جوړ | ما کړ وغم ا و ژ ړا نه ډ ك
ما کړد و رونو پهوینو رنګ | ما کړد خوا ر دآ زا ره ډك
ما کړ د ظلم او زو ر و طن | ما کړ د مرګ د غراره ډ ك
تا کړ ځوانی او دلدار له جوړ | تا کړ خندا او حماراله جوړ
تا کړ سپو ږ می او ستو رو له | ماله پسر لی او یا ر له جوړ
خوما کړ دو ینو او چغو ډ ك | ما کړد- ور او ا رمانه ډ ك
تا کړ سروراو مستی له جو ړ | ما کړ د غم ا و ژ ړا نه ډ ك
ای ما لیا ره د د ې چمن ! | ا ی ما یکه د د ې جها ن !
دا دنیا ګوره دې سمبا له کړه | دادنیا ګوره دې به ملو ده حان'
ګوره ' علم اوزورئې خوری | ګوره ' هنراوشعورئې خوری

ځوی دآدم آدم خور شولو
و ګوره اوروره ورورائې خوری



له دې ځایه د پنجرې چغار شروع کیږی، دیکښې اکثر شعرونه خان د ۱۹۴۸ نه تر ۱۹۵۳ پورې د پاکستان په مختلفو جیلونو کښې لیکلی‌دی .

پنجره به پخوا د پښور یونیورسټی بک ایجنسۍ له خواچاپ هم‌شوی‌دی .

## ثنا

توره شپه دې کله دلـه دغمونو انبار راوړی
کله شمع ساقی راشی اوخیام اوستارر اوړی
کله توره شپه لحدشی هر څه ورک کړی په تیاره کښې
کله رنګ اوخمارراوړی کله شرنګ اودلد راوړی
کله چوب اوبې قراره یودریاب داسو بلو شی
کله مست درنګ محل شی بې خودی اوخمارراوړی
دا زما بې خودی واړه یو نظر ستاد قرار د ی
دا زما دریاب دحسن ستا یو څا څکی دخمـا ر دی

## دجیل خانې خوب

خوب وینم عالمه! که ئې څوک را کړی مانه (۱)
پروت یم سرمې اینبی دخپل یارپـه زنګا نـه

خوب وینم چه پورته په هوا لکـه دباز شـو مـه
کینا ستم په بام دمحمود سترګې دایاز شـو مـه
پورته دخاموش زړګی نه خـوږ دمینې سـا ز شومـه
خرڅـه مـې پـه حـورو کـړه دچـو زمـانـه
خوب وینم عالمه که ئې څوک را کړ ی مانه

(۲)

خوب وینم چه ناست یم دجیندی(۲) په یخه غاړه
شاه مې سو بلو کښې لـکه سره شمع و لا ړه
سرې شونډې مسکی، شوه ماته وې چه ژاړه ژاړه
څښه دې د زړ ه وینې داشـراب دی مستا نه
خوب وینم عالمه که ئې څوک را کړ ی ما نه

(۳)

خوب وینم چه باغ دی دګلونو او ماښام د ی
سر ې سترګې ساقی دساقی سرو ګوتو کښې جام دی

(۱) معنی(۲) «جیندی» دهشنغر دمینځ هغه سیندی چه زمونږ زانه واړه کلی ئې په غاړه پراته دی (غنی)

لا س په ستا ر پرو ت ليو نی مست لکه خيا مد ی .
اړ ی پر ې نر ی‌ نر ی‌ د مينې ا فسا نه
حو ب و ينم عا لمه که ئې‌خو ک را کړ ی ما نه

(٤)

خوب وينم چه سپينه سپوږمۍ‌پاس‌په‌خندا راغـله
مالم(۱)محـوبه په شرم شـرم ترخو اراغللـه
شـونډو کښې‌شراب‌او‌په کو کيډ کښې قضاراغلله
سـر خمـار ئې‌دا کړ پيمـا نـه پـه پيمـا نـه
خوب وينم عالمه که ئې خو ک را کړی ما نه

(٥)

خوب وينم چه پټ شوم په‌نسم کښې بهر لاړمه
خواله دجانـان لکه د مينې نظر لاړ مه
ستر گود د لدارله لکه خوب دصحرا لاړ مه
يو شرنګ کښې مې لوټ کړه‌دعمر ونوخزانه
حوب وينم عالمه که ئې خو ک‌را کـړی‌مانـه

(٦)

خوب وينم چه زه لکه او لکه‌په سل وو تم
پورته دنرګس نه شوم په خوادرا مبيل وو تم
تاو دسپينې غـاړې د ليلی په اميل و و تم
پټ مـې ورتـه ووې سـلا مونـه جا نـانـه
خـوب وينم عالمه که ئې خو ک را کـړی‌مانه

(٧)

خوب وينم چه پورته لکه چغه دمنصور شو مـه
يا‌يو مو قی خاورەوم يالوی دريـاب دنورشـو مه
(خو): بانګ‌دسحروشوزه‌راويښ‌شوم کرو کورشومه
خوب يووړه خوبونـه را ژوندي‌ شو ه ز مانـه
و ې پـريـوځـه ليو ينـه ا تېر وه دجيلخـانـه

حيدرآباد‌جيل ۱۹٤۸ع

---

م(۱) ما ا هم

## قید

د سحر تیل او دال     د ماښام دال او تیل
د کوټکوړ په ګوټ کښې     (۱)قولپي د عطر او فلیل

د سحر دوه چپا تې     لکه زړې چیتري
د اسې خوزه او پاسته     لکه د خرو ټغري

چای لکه یخه شورو ا     په تروې کوړې تور ه
بیا له د زیړو ډو لچه     اوس راشه‌خوندې ګوره

ستر د برګ تر پړی     سو زنۍ تور ګمبل
او یارانې له د شپې     سار به‌سار به کټمل

محفل د ښکلو خلکو     ټول بزرګان شریفان
یا مټیز ک ګڼکیا ن     یا اچر تی قا تلا ن

چه لمرز یړ ی شی هیله     ماپه‌پنجره کښې کړی بند
لکه مړ ز په قطار     په‌ولاره کښې کړی بند

تما مه شپه ګرځی     دم په دم کړ ی نفنیش
ته‌وی (۱)چرګ یمه‌زه     یو به مې سی پنا پیش

د بند یند و سره     همه د نیا د بهر
بو ه تور ه لړ ه شی     کښېنی مې آن په‌ځیګر

د جها ن ټو ل غمونه     لکه سیلوړ را شی
د زړګی سرله به‌ دې     لکه ګو لې را شی

اوچه ار ما بونه پکښې     لا د لو بوړ را شی
لکه د مړ ی په کور     چه سره ډولوړ را شی .

او چه د با غ د ګلو     ما ښا م را یاد شی
لاچه دې ډ ک د مستیء     سور جام را یاد شی

بیا خو مزې کو ه     هیله به سر کښې شې
ډوب لکه وزی ملا     به په قر قر کښې شې

(۱) دجیل چکیړ کښې د بولولوښی‌هم‌پروت وی-(۱)وائی

که دا خدمت وی د قام زمو نبز تو به ده
دا دا ل او تیل هضمو ل گر انه قصه ده
او لا په دې کښې هم غنی غزلې وائی
د عشق او ږ دې مزې په بلې بلې وائی (۱)
و لې په تشو او بو شاعری گرانه ده
چه تاو داو رنه وی زر گری گرانه ده
قاضی(۱)صاحب وئی قران سحر ، ما ښام ، ماز یگر
خان له ئې آوار تپ کړ او ما له ئې خوږ که سر
که هیله عبز کړو و اوس راتـه وائی آیات
قهر په مست او سر شار رحم په صوم و صلوات
شه و کړ و صبر به شو دا د الله جانـه ده
و لې په تشو او بو شاعری گرانه ده
حیدر آباد ۱۹٤۸ ع

## خاورې

نه منم نه منم یاره ،مرگ انجام دهستی نه‌دی
خلاصیدل‌شراب‌په‌جام کښې،اختتام دمستی نه‌دی
چه ماښام د کومې شپې وی، نودهغې سباهم وی
چه رڼا وی تیاره هم وی ،چه‌تیاره‌وی‌رڼاهم وی
که یونه وی ل هم نه‌وی،اوچه‌وی‌نووی‌به دو اړه
د ې د ر ما ب له چرته شته دی‌اړې‌بله‌یوه‌غاړه
زرسحره دبهاردی یو ما ښام کښې د خزان
شال‌خمونه ډ ک دعطرو یود ا نه کښې در یحان
چه‌یوه‌غوټۍ‌رشی‌خاورې تخم و کړی رو غ گلزار له
دخپل‌رنگ او بوی پنه ونه شکرانه‌وسی‌بهار له
داجهان‌دنوراوسوز ،ولې‌ورکیشی‌چه‌ساز‌چوپ‌شی؟
چه جانان په مستو ستر گو گوتې‌دروړی ستارله ؟
با قبرونو کښې‌پرتې‌دی‌لاس‌او‌پښې‌شو نه‌ې‌او گوتې
شو ک شی قبرجوړولی‌ددې‌سروستر گو خمار له

(۱) وهی ۲ قاضی عطاالله وزیر تعلیم رما یوالخی دحیدرآباد سند دجیل ملگری دی .

جام ئې مات شو میخانه کښې لیو نی تري غلي پا شید
زړه ئې ډك د رنګه یو ځړ دي روان کوشې دیارله
ساقي نوي جاړ راواخست په ړوشو نډو کښې موسکی شو
بل عاشق ورته لاس وینو شکرانه تولی (۱) دلدار له
لا له بې سره سزوره تش کنډول ؤ مرګی یو وړ
خا و ر ي و خاور و لهلاړ کنډ ه و کنوي خوار له

حیدر آباد جیل
۱۹٤۸

## ای باد صبا

تـه څه خبر ئې ای بادصبا! څه د نیا ګـا نې تالا کـړی مو نبز
هیریم (۱) کړې زلفې خورې ورې شو نبې جانانې تالا کړې مونبز
هیر م کړ هغه د نو ر صبا ، هیر مسا ه لیو نی ما ښا م
هیر یم کو کی میـه ما کي کړی پروت دی اړولی د مـو جام
ډکې ډکې ځو لی د نو ر څه په خندا مو نبز نو ستلې د ی
سري صرا حي د رنګا او سار مو نبز به صحرا اړ و لې د ی
سترګي چه وې د خمار ډکې مست د ژو ند شر نګار ډ کې
پور د شرا بو پیا لې د ناز ښکلې د سر ا و سنګا ر ډ کې
ور کې شوې هېرې شوې خا ورې شوې یاد او ارمان ئې هم خاورې شو
پا ڼې ګلا ب او غو ټې د څه غم د خزان ئې هم خا و ر ې شو
ته څه خبر ئې ا ې بادصبا! څه دنیا ګا نې تا لا کړ ې مونبز
هیریم کړې زلفې خورې ورې شونډې جانا نې تالا کړې مونبز
حید ر آ با د جل

## سو دا ګـر

عجیبه د ا سو د ا ګر د ی | په لا س تیغ په سر قـر آ ن
شنه قبا ئې د ا مام د ه | کلکې ستر ګې د شیطا ن
په ځیګر لکه چنګیز د ی | چاو لی لکه ما ها ن

(۱) ، و ا وی (۱) هېرې مو

په خله خوږ د ګلو باغ دی    په زړه سخا لکه ډېران
غړ مېده لکه زمری کا    غړېده لکه حیوان
پنجې ډوبې په سرو وینو    سر ئې بره په آسمان

---

ماته ولې چه ځوانه راکړه    ستا پښتو توره او ننګ
راته وائی غیرت دې پرېږده    شه زما د ډرملنګ
وئی سر ټیټ کړه ګنې کړم به    په تا ملک دالله تنګ
وئی هوښیار لکه ابلیس یم    زه خو نخوار لکه پلنګ
ته را کوز شه ښکته کښېنه    ما له را دیار پالنګ
یاما خدائی کړه سجده وکړه    یا زما او ستا دی جنګ

---

وی د اتوره زما لاس کښې    ستاد ژوند احتیار زما دی
ستا خمار غیرت او مینه    ددې ګوتو ښکار زما دی
داشمله د ننګ کړه ټیټه    ډېر تبره ګوزار زما دی
د فرعون چنګیز وار تیر شو    اوس راغلی وار زما دی
شه غلام د دې غلام    په ده ډېر اتبار زما دی
خاورو خټو کښې پراته دی    چه خوړلی وار زما دی

---

که زما شوی زما ځوانه!    ګوره داد زر و تخت
پاس به دې د پاسه کښېنه    خو شحالېږه په خپل بخت
دا جامونه د شراو    مسند و به د زر بفت
دا پسرلی دا پیغلې مستې    ستا د سپینې ځوانۍ وخت
دا جنت دعیش او زور    بلخو اور داوره سخت
ځوانه څه سامی له ورشه!    کړه داسره سینه بالخت

---

ربه ښنګه سود اګردی!    ښنګ ژوندور کړم بنهان و اخلم؟
ښنګ نظر دستر ګوور کړم!    او چشمی د مرجان و اخلم؟
ښنګ بهار او سپوږمې وور کړم!    د لالو نو ډېران و اخلم؟
د دې سرو د طوق بدل کښې!    ښنګه دین او ایمان ور کړم؟
در يبار دو يرې ښنګه!    بې خودي او جامانور کړم؟

---

داد نور او مستۍ ډک سر    په سجده کېږدم غلام ته؟

د قصاب د چیچړو مینه — څنګه وښیم خیام ته؟
څنګ د بل د تالی پاتې — ګړم چو که د مستۍ جام ته؟
څنګ دلدار په دنیا ورکړم — رقیب وخېږ وم بام ته؟
د جانان ښېسته سر څنګه — د فرعون په پښو کښېږدم؟
د کارغه د در مهر ونه — د عقاب په پښو کښېږدم!

---

نه دی لید لی سودا کړه — تا د سرې وینې غورزنګ
په ټیټ سر باندې نه ښائی — د ازما شمله د ننګ
د سروزرو تخت قربان شه — په آزاد کند د ملنګ
ټیټ وسترګو کښې وچیږی — د سرو راو مستۍ رنګ
سنا شراب د زهرو ګوټ دی — خلاصول ګړی دا یمانه
ستا ساقی د څکلې ړمه — په دوه نیمو پیسو ګرانه

---

څه ورکیږه سودا کړه · — لیونی مونږ د دلدار یو
نه ئې وزی د لالو نو — مونږه وزی د خمار یو
نه ئې دم نه ئې دا روشته — مونږ په داسې رنځ بیمار یو
ته مغروره په خپل زور ئې — مونږ په مینه کښې سرشار یو

**راشه وګوره فرعونه داد وهه د ملنګانو!**
**په دې خاورو کښې خورې دی ګړی د بادشاهانو**

هریپور جیل ۱۹۳۷ ع

## ژوند

چه حمار مسی ترې وځی — شراب شی ترخې او به وی
چه سرور غر ورئې نه وی — داژوندون ژوندون د شه وی
چه د مینې زړه شی پاتې — لکه ګل وی ړژ بدلی
یا شغله یو د نور وه — یا یوموتی د خزلی
چه په ژوند کښې سخه نه وی — لکه بې ما لګی طعام
چه په خوله کښې خندا نه وی — لکه ړک د خاورو جام
چه ځوانی کښې تکلیف نه وی — لکه پټه میان کښې توره
نه ئې پرق شی نه ئې شرنګ شی — په زنګونو شی رنځوره

چه آرام وی او سمام وی اویاری په جـا یـداد وی
خر با نو هم شیر یـشی‌روی هر تر و پر و فرها دوی

چه پیر سر په خند ادا و شـی هاله‌خوزر از ونیا ز شی
چه د سپینوتور و جنګ شی ښکاره‌هلته کښې‌ایازشی

ژوند که تش فیرنی‌شتال‌وی داخو سپی هم شی‌شـتلی
که تش نسل زیا تول وی دا غو ئی‌هم شی کولی

ژوند نه خیته نه‌ما نهیر دی نه پریرې دسر ولالو نو
نه‌یا ران نـه معشوقـی دی نـه باغو نـه‌د ګـلو نـو

ژوند خو تله دی‌په یو مخه
غور ځیدل او پا څیدل دی

تکی سوز او تکی ساز دی
څه خندل دی څه ژړل دی

ژوند په‌ستر ګو دعاشق کښې
پـلو شـه د ه د خـمـا ر

په صحرا کښې لټول دی
دآشـنـا د کـو څې لار

حیدر آباد جیل
۱۱ / ۸ / ۱۹٤۷ ع

# ګوګل

دې ګو ګل کښې مې د ننه هم دوزخ دی هم جنت
دې کښې قهر او غضب دی دې کښې رحم او راحت
دې کښې پروت یو سمندر دی د نشی او د خما ر
دې کښې پروت یو تهتر ین دی د لمبو او د آزار
دې کښې پروت دی دومره رنګ د سپرلی او د خندا
چه‌یو برق ئې یورجهان کـړی د مستـی او د رنا
دې کښې پروت دی دومره‌درنګ د تیـاری او د ژړا
چه یو‌اف ئې تورلحد کـړی د خندا د کـه د نـیـا

دې کښې دومره شجاعت دی
یو نظر کښې تار په تار کړی
چه په ویره باندې راشي
داسې رنړی داسې تښتي
اوچه کلك شي داسې کلك شي
نه پرې زرتورې اثر که
دې ګوګل کښې مې دننه
داهم لار هم کاروان دی
پروت په دې کښې تول داستان دی
خور په دې کښې لوی جهان دی
داهم باغ دی هم خزان دی
دې کښې ره نیاز بین ګلونه
داهم زهر هم زقوم دی
داهم تور د مرګ څادر دی
ده کښې پروت داسې شراب دی
به بدمستـه او سرشاره
دی چه ځی په برهدر ومی
چه په بدو باندې راشي
عجیبه دې یم جوړ کړی
بې د تیا به نـور د هر شه
دا داورا ونو ر دریاب
دومره وړوکی لکه څاشکی
دا قصه د سوز او ساز
نښیست او غم راز او نیاز

چه د کل جهان مرګونه
لکه بادو پړی بوسونه
زړه ترې غټ دی د منبزك
داوبو څاڅکی ترې کلك
لکه کانی د فولاد
نه پرې زر کاله فریاد
هم دنیا ده هم قیامت
هم تدبیر دی هم قسمت
د جزا او د سزا
د وصال او د وفا
هم سلبال دی هم بهار
او د شنو او بو شرار
هم ګمین دی هم ناهبات
هم چینه ده د حیات
چه یو څاڅکی د هغې
کړی داوا ړه فرښتې
شي جمر بال ورته حیران
امان وغوا ړی شیطان
ای زما خدا یه عجبه!
د همه یم مرکه!
دومره لوی لکه آسمان
دومره لنډ لکه یو آن
ولې ولې څه له څه له؟
ولې ولې څه له څه له؟
حیدر آبا د جیل خانه

۴۸/۸/۰۳

## جناب شیخ

زړه دې ډک دی د خپل ځانه
داسې ډک ئې د نیکوم نه

په کښې ځای نشته د یار
لکه ډک د مړ و ښار

دواړه سترګې دې ړندې دي
تل اینه کښې ځان ته ګوري
شونډې ستا وزګارې نه دي
د خپل نور قصیدې وایې
دریا ښه درنه تاؤ دي
چه په بل کښې بدي وینې
د بل ښیست در ته غلا ښکاري
د اشمکور ړانده چه وینې
داهم ستا په شان روان دي
داچه ته ورپورې خاندې
ستا قبا د شنو ریښمو
داهم ځوی دی د آدم
څه که ډوب دې په تیارو کښې
دی هم ځي په څغو څغو
ته چه ئې ګورم په طمعو
ای چه ډوب په فضل ډوبائې
دده شور څغې هم واوره
داچه دی پرې پرمخ پرېوځي
دا دې دی سر ماتی ولید
شیخ چلوا د نیکو ډکه
ستا دعا د ځان د پاره
ستا د ښو ډیوه بلیږي
دده سرې لمبې داوردي
دی تصویر دی د آدم
او په سوو وزرونو

د ال بد د ځان ښه وینې
دیار نه وینې سنګار
چه صفت د آشنا وکه
په کوڅه کښې د دلدار
لکه لوی واو تور حصار
څومره زړه دې شي خوشحاله
ستا د تورتاریک جماله
چه ډغرې وئی غورځیږي
داچه پرېوځی او پاڅیږي
د امجنون او د املنګ
او ددوی شلیدلی انګ
د الله د ګوتو جوړ دی
په شرابو کښې شړ پوړ دی
دی هم هغه روان دی
هم هغه دده مکان دی
ای چه ره ځي خوشحاله
داهم ځان له وئی هم تاله
ما ته ښیي تیندک د لارې
ځکه ته روان هوښیارې
ګنهګار دی ستا استاد
تا له دی دده فریاد
په سینه کښې ځان د پاره
د همه جهان د پاره
د ختو او پریوتو
د پتنګ د الوتو

حیدرآباد جیل
١٩٤٨

# ساز

شو نډ و له خو ند | ا و ستر ګو له ر نګ
پو ز ې له بو ی | د نر ګس د لو نګ
ز ړ ه له ا میدا و: | مستی ا و ا ر ما ن
غو ږ له سر و د ا و: | شړنا ا و شر نګ

ماله سر و ر ا و ژوند ون او نور
د ا شو آ و ا ز ه د ژو ند د ر نګ

ټـق ټـق د ا و ر | ټپ ټپ د با ر ا ن
ا خ ا خ د و صا ل | ا ف ا ف د ا رمان
و ی و ی د جنو ن | و خ و خ د صنم
نسا نسا ـ ا و ا و | هر و خ د صنم
کـټ کـټ د خند ا | پړ ق پړ ق د مستۍ
شر نګ شر نګ پیزیب | چـڼ چـڼ د ابنتۍ
شـړ شـړ د ا و بـو | شـخ شـخ د نسیم
بـس بـس د د ابر | بـړ بـړ د غـیلـم
هـین هـین د هـسنډ و | شنګ شنګ د ګوا ړ
قـړ قـړ د چـلـم | پـر پـر د لـو لپ
د م د م د د و ړ ې | ټنګ ټنګ د ر باب
غـړ غـړ د پیـالـې | سخ سـخ د کـبا ب
چپ چپ د کـو کـی | پس پس د د لبـر
چړ چـق د تـا ر و | ګو ګو د کو تـر
بس بس ګړه آ شنا ! | بد بد ئې ر و ا ن

ایـش ایش دا قلـم
هنګ هنګ دا بیا ن

حیدر آباد جیل

۱۹۴۸

# اور

ګنهګار یم ګنهګار یم — هم د خدای هم د دلدار یم
بې وفا په محبت کښې — نفس پرست او بې اختیار یم

مینه مینه په خوله وایم — مینه نه لرم حیوان یم
نه مې لوظ نه مې قسم شته — نه مین په یو جانان یم

چه ګوم ځای ځوانی اور ننګ وی — چه ګوم ځای د ګونګرو شرنګ وی
چه د چا د تمبل تنګ وی — نو زما ورته غوږ ځنګ وی

یو مکه د مسلمان وی — د کافر یو بت خانه
هره ورځ زه بدلومه — نوی نوی میخانه

هم مې مینه ده بې پته — هم ګناه مې بې وفا ده
چه مې کومه مخامخ وی — زه وایم دا زما لیلی ده

که لا ړ شمه جوماته — په سجدې په زاری پرېوځم
شل سجدې مې کړې نه وی — بیا د چا په یاری پرېوځم

یو سور اورمې دی ګوګل کښې — ما سوزی د ننه بهر
نه دی یخ شونه دی کم شو — چه د اور دی که سقر

که ساقی د کوه قاف دی — که شراب دی د شیراز
سپینکه مې ترې زړګی شی — چه معلوم ئې کړمه راز

که ماښام وی که سپوږمۍ وی — که وی زار او که ساز
روح مې تنګ لکه لحد که — که وی سوز او که وی ساز

دا زه څه پسې حیرانه — سرګردان پریشان ګرځم؟
دا زه ګوم خواته روانه — په باغچه بیابان ګرځم

ګنهګار یم ګنهګار یم — آدم خور یمه خپل ځان خورم
خپل ښایست خاورې کومه — اژدها یم خپل جانان خورم

دی په زړه د ننه اورمې — روروتن او ګی او ګی که
دی ایرې کړه سره ګلونه — شین چمن لوګی لوګی که

دی د اور هسې خوراک که — نوی نوی انبار غواړی
نوی رنګ نوی محفل کښې — نوی نوی خمار غواړی

در وغجن یم دروغجن یم — داله قصده کړم فریاد
نه یم تنګ زړه دې اوره — زه په دې یمه اباد

زه به د وله خاشاک ګورم — که باغچه که بیابان وي
زه به ده ته لوګی کومه — که ځواني وي که جانان وي

دا ده په لمبو ګوره — زه سپوږمۍ او ګلزار وینم
دا ده په شړ او ګو کښې — زه اور مې د دلدار وینم

دي زما په وینه پائي — زه ده په لمبو پایم
دي زما وجود او ساده — زه ده په لمبو پائیم

چه دده پرې او شهار وي — هلته ژوند هلته انسان وي
چه دې نیې د خاورو توپ وي — پنه خر له د ویران وي

لیونی یم لیونی یم — نه مې سر شمه نه سامان
نه په مینه مستیږه بوه شوم — نه په سوداونه په زیان

عجیبه بې روه لارده — عجیبه پرې ځی کاروان
که قدم احام غور ځېږم — که ودرېږمه تاوان

عجیبه غوندې شرابدی — چه ئې ځښم لاتېږی کیږم
عجیبه، من او سلوای، سما — چه ئې خورم لاوږی کیږم

دا په زړه دښه اور مې — که ئې وژنمه ور کیږم
که ئې نه وژنم سو ځیږم — او ګی کیږم ایرې کیږم

لکه شمع بد نصیبه — لا به سوځم لا به مرمه
لا به ځان تالا کومه — لا به نور دریاب له ځمه

بس دې سی کړه لیونه؟ — دا د ولې لي بباب
جام کړه د کستر ګې کړه پټې — تکوه دې حوږ رباب

ورځ دې شه ور نژدې شه — چه دیبارشونه مې شکرې
رو په مینه مینه وکړې — دوه حوږې حوږې خبرې

تورې سترګې ئې بلیږي — لکه شمع د معراج
د غم سرو شونډو کښې اوردی — اوردی هم داور علاج

په سرو ګوتو کښې جنت دی — که دوزخ دی که پټماده
(وائی) سوځه وځه خانانه ځانه! — ژاړه ژاړه دا دې ماده

حیدر اباد جیل ۱۹۴۸ ع

## ګواه

بو تکی د رنګ کښې — د رباب رنګارنګ
بو ښاخکی د ساز کښې — هم سوز و هم شرنګ

د ژوند یوه لمحه کښې — سرور نه عمر ونه
بو چونګ کښې د خاورې — مستي او غمونه

په لپه ایرو کښې — خاورونه د نور
د هر ګل په شونډو — رازونه د طور

خاورینه خرمن کښې — خندا او غرور
تیاری د شهرت — اورنې او سرور

دې بت کښې د خاورو — د اتال د ابد
د ښاخکی په مخکښې — جمال د ابد

ثبوت مانه لوی ستاد ځان کوم دی — ګواه مانه بیا ستاد شان کوم دی

خاتپور

## څومره؟

څومره مینه مستي در کړم ادب څومره؟ — څومره تا دلدار جانان کړمه رب څومره؟
نه زستا په حدود ځان په حساب پوه شوم — ستا پوره دي په خپل هنګ او طرب څومره؟
تورانیه به سازسرود تر کومې رسی — ګلاب پوه دي د ښایست په مطلب څومره؟
دا ستروزمي چه کل جهان حیران حیران کړی — دا پوهېږي د خپل نور په سبب څومره؟
رنګ رنیاد خپل ځیګر بې خوروم مه — دومره ښیست وی چه زما اوی مطلب څومره؟
دا سري شونډې ئې او سرور ښان کړې — معشوق پوه وي دعاشق په مطلب څومره؟

زما مینه د ه ادب د پنجرې و ځی
وایه څومره دي جانان کړمه رب څومره؟

خان پور

## بل څه

په نظر کښې مې — د باغونو خیال
په نصیب کښې مې — لاره د غرونو

عجیبه اچار — مې اچولی دی!
د ګلونو — او د غمونو

په غوږونو کښې — شرهار د ساز
د ګونګرو پېزيب — او خند آواز

ډوب مې‌زړه لټوی — بل چه نوی ساز
بل څه نوی سوز — بل شه نوی راز

څکه خیال کښې مې — د باغونو رنګ
او نصیب کښې لاره — د غرو و نو

ما د تورو هیرو — جوړ کړ یدی
ځان له ښکلی تخت — د خوبونو

هری ډور

## تش جام

هغه ساقی وی — چه ئې تش شراب وی جام کښې
نه ور کئی خمار دستر ګرو — رنګ د سر لبانو
داد دوزخ اور وی — چه تش، سوی وی رنها نه وی
دا هغه کافر دی — چه خطبې لولی ماښام کښې
دا د ازغو جاړه د ګلاب — خو ګلاب نلری
دا لو ګوو هلی سیخ — تیکه او کباب نلری
زهر زهر زهر دی — شراب چه خمار و نلری
کفر کفر کفر ده — مستی چه قرار نلری
شه هغه بنده وی — چه جنون اودلدار نلری
هغه د شه سینه وی — چه غولی او آبشار نلری
هغه شه مومن وی — چه مستی د کافر نلری
شه ورم هغه سترګې — چه د مینې نظر نلری
هغه د عاشه وی — چه شرنګا را وشهارنه لری

زهر زهر زهر دی
شراب چه خمار نلری

## «آدم»

عجیبه مې و جو د لا عجب مې ځیګر
شه بې تو که بې‌توله داستر ګې او سر

یا په بام د حرم د مستی ترا نه
یا په شپه د وصال د نغلو نو بانه

یا موسی ته قیصی د فرعون دمحل
یا فرعون ته بیا ن دا بد دا جل

یاد غم دبې ی نه سرور غو ښتل
ت خا نه کښې په قونه دطورغـوښتل

کله روح د مجنون او ساقی او پیاله
کله سر د خیام او ژړا او صحرا

کله خوب د منصور درنیا دو صال
کله شوق دحبشی د کو کېږ او د خال

کله ډوب بې پا یانه کوهی وی‌دغم
کله هره بیا له کښې صنم او صنم

یا د ژوند کا کو کښې‌دمرګ تصویر
یاد مرګ سلګو کښې د ژوند تعبیر

یا پیغام د فراق په خندا کښې دیار
یا امید د وصال په ژړا کښې دیار

یاد جبال کو تکی کښې خوبوه د کور
او ابرو کښې ار مان درنیا او داور

دابیخوده دماغ بې کما له وجود
بچاری (۱) دمندر او شوقی د درود

هم غلام د ښیا یست هم مرئې د وفا
هم دریاب د تیاری هم مستی او رنیا

بې آرامه ار ما ن بې قرار ه نظر
شه بې تو که بې‌توله دا ستر ګې اوسر

یا په بام د حرم د مستی ترانه
یا په شپه د وصال د نغلو نو بانه

خان پور

## غـم

پنسن مې «غږ» ورك کې قلم تش دسیاهۍ نه
کو ته کښې یخ ار تر یخ او ګی با هـر یخه سیلۍ نه

دماغ مې پریشان زړ ګی پریو تی د مستی نه
خیالات مې ورك نو ستلی غنم و الی په ژ لیه

د نیـا مـسی د امید د رنیا تشـه تکه تـور ره
دغـم د قـیصـو ږ کـه‌دخـندا آوا ز ئې هیــر

هرلمحه دساه تر خه بې حو نده او چه سپو ره
محمو د خان لیونی کړ شوکت ښسته آیا ز ئې‌هیر

(۱) همسایه ـ ګاونډی ,منجور ـ

دا غم نه د طاقت د حکومت نه د شوکت دی
دا غم د تیر یدو دی بې مطلبه د ژوندون

لیلی منحمل صحرا همه بیار دی خوافسوس
د ځان لیونی کو او همت و نکړ و مجنون

په پیرول ۱۹۵۰

## هوش

شراب هله شي شراب چه څوک ئې وڅښي
ګل چه خور کړی په ساړېن در نګک بو کان حیل
چه آواز د سره وځي بدئې رنګک شي
چه نو لاد د مینې مستې او به واخلي
سړی توب چه اوړ او چت شي لیونتوب شي
چه انسان مالک د حسن او سرور شي
دسپوږمۍ حسن روښان شي په شبنم کښې
دژوندون مطلب کمال دی دا ظهار
مل شه نشته ځان او ژوند بوره کول دي

ځانکي سیندشي چه چپه شی یا ابشار شي
په تیارو کښې جوړعجب دښیست بازار شي
چه خود ی دخود ه وځي نو خمار شي
وحیران او پریشان تار د ستار شي
چه صحرا په رنګک مین شي نو ګلزار شي
او راو ګوروورته ګاو نه لاله زار شي
د ښاتول او ګیرولو نه د ښامار شي
بوله اوښکي بوله ,, اح ,, بوله شې نګارشي
قسمتي هغه حو بو نه چه بهار شي

بس بنده دي که مجنون دی که مدهوش دی
حر څو نکي اخستو نکي د ده هوش دی

که جومات کښې بس الله الله دی
دغه حوند کړی چه بو یار شي بوریسارشي
تول دهوش کفر که مینه که سرور دی
عجیبه واکدار کې جوړ رب د جهان
دی د حسن بچار ی ته لیو بی وائی
د ژوندون احساس ته حبط اوسو داوائی

میخانه کښې بو آواز د هوش «بېنوش» دی
دغه حیال کله جانان کله بهار شي
د ده ستر کي دی به شمع ده نه نور دی
چه دعقل تور کمد و ته فتون وائی
او دحاو رو سوداګر ته قارون وائی
عاشقي ته د بد بختو جنون وائی

دده هوش دده دمینې تور ښامار شي
داعیسی غریب پخپل بستر په دار شي

هوش محل بو دسوو نو منار و دی
ده کښې ښېنېتار حانې د طور د ګتو
دی کښې سپین لوی محلونه درنها دی

لوی وطن د دریابو نو د دروو دی
دې کښې حور بو تور دریاب تور په تیارو دی
دې کښې خور خاموش ارمان د مقبرو دی

کله کله دمستۍ سره خمار و نه — کله کله تش کچکول ډک دآ سرو دی
دا دی شکر چه دغم په تور محل کښې — رانښکاره کله یا مینه یا د لدار شی
دادی شکر چه دمرګ په بادشاهی کښې — کله کله څاڅکی اوخاوندی آ بشار شی
دانعمت دی چه په او زه ګاڼه شوی — خط وخال تا لا په سر وشو مه و دیار شی
هوش چه ورک شی دخپل هو شه نو مستی شی
چه څو دی دخوده وځی نو خمار شی

ګرسر

## تخمین

او ه تپوس د حسن مکړه — سمندر شی څوك تللې
څوك سپوږمۍ شی رابېولی — څوك ځهراشی ښکلو لې
حسن پلار د مینې او مور د عشق
ښکېنې پښه دی قول سپین اوتور دعشق
دده خیال نظر همه زور د عشق
په سر و شو مه ملوی ښکلې اور دعشق
دا بيا بيا د سر او سرور دی
دا تعمیر د جلال او نور دی
دا مکه د سرګو خندا کښې ده
دا په هر کو څه کښې طور دی

دا آدم د نوم بس نو دا سبب — د بهار سبب د ر نیا سبب
د حوا د ژ وند او زمان قصه — د سرود د رقص او ژړا سبب
دا څواب دلکو بوسوالو نودی — نشته هیڅ دژو ند ون بل څواب
دا صوفی ته محراب اومنبر ښیی — لیونی ته کباب او شراب
دي دخیال اورنګ دنیا کښې دا — پلو شه د مینې د یار ده
دادرحم پیغام او وعده دوصال — را لېږلې غلام له دلدار ده
دا د مرګ سبب — دا د ژ وند ضرور
د ګناه نمر يف — او معنی د نور
دا د عشق و جود — دا د مینې راز
دا د سو ز خوند — دا مستی د ساز

هر نظر ئې شراب دی مستی ده | داد روح لیونی میخانه ده
د نده او آواز پر رازدی | دژوندون او حنت افسانه ده

خاپور ۱۹۵۰

## نه گیږی په عقل

سپین وینیته دی تاو کړه ستو کمر څنه ر ې جوړه کړه
قرض رنګ پرې توی کړه قالین جوړ دچپله پوره کړه
نه کیږی په عقل تو کال غوا ړ ی د چر سیا نو
شنه دی ګلونه په کوڅه کښې د ملیا نو
د لمه ښا نکونه دی تالی دی ر کیږی دی
د لمه شراب نشته پیکوړی او ز لو بیږ دی
عقل له سرور کښې سر له عقل کبې کور نشته
دا خبر ې ما ته مې ورو ورو کړ ی ا ښه دی
مینه (....) (۱) یو مینه وی نه د سود وی او نه ر یان
د لته په کچکول کښې خور ې شوې نوا بیږ دی
لاره د هو ښیار په کډو کډو په در و ده
منطق د هسکې تیتې دی او ډ که داسرو ده
دا سی آواز کوری چه نه زیروی او نه بم وی
خو ښه ئې رباب کښې خاموشی د معبر و ده
اوښ خوا رله یا لو ږه او صحرا وه یا مها ر وه
خر د هو سهږ رور دی خو مین دی په جوا ر و
کو ر د نمې څه دی تور محل د ملا ګانو دی
روح ناوې کول په ډو لکوږ کښې د پیر یا نو دی
تش د کباب خو ند له اسمعیل حلالو ل دی دا
مادا آ ور یدلی په محل کښې در ندا نو دی

(۱) د لته یوه کلمه په چاپ کښې مغشوشه شوی وه ـ ومونه اوسنی شوه ـ د (جمد ـ زوند) عوندې کلمې شک پر ې کیږی شو.

زور او غرور نه لری عشق صبر او ارمان دی
سر او سرور نه لری سرځان دی او جهان دی
هيڅ ترې نه جوړېږي خانه څه بانه خو جوړه کړه
تاو د خپله سره در امیل په ځای کړوړه کړه
شرق ور کړه اچل له د مستي کړوړه پور ته کړه
جوړ عرب نیلی دار ماټو د خره زوړه کړه
بره دې دا سر دار ماتو تو د خزانه کړه
بره دې نظر لبزشانتې بره د صبانه کړه
زړه کړه د خلیل نو قول ګلو نه دی اور نشته
عقل له سرور کښې سر له عقل کښې کور نشته
څه مين د رباب د رنګ پیدا د فکره سوړه کړه
سپين ویښته دې تاو کړه څڅو کېږ څڼه ترې جوړه کړه
ډيره اسمعيل خان «ګرمل»

۱۹۵۰ ء

## اور کښې

ډول د لرې خوږ دی د هند کیانو دامتل دی
هره فلسفه د لرې ښه او پوره ښکاری
زړه د بنده نه دی عجیبه بې چله چل دی
ډو به په ارمان کښې چواړېږ هم حوره ښکاری
عقل له دهو که ور کوی حسن که دلدار دی
ځان نه تبنید ل دی عادت دی که حمار دی
دامسته رنا د امینه حوري او ما ښام
څه رنګين سراب دی دليد او پوهيد لو
داچه ور ته ګورې بل څه نه ويې نه ګورې
داعجيبه دام چا دی جوړ کړی دليد لو
دايوه قصه ده د ډوك جام د تويدلو
د غه فلسفه ده د دریاب د بهيدلو

رحم نه انصاف دی یو تدبیر دی د دوام
هر څوك ئې پکار دی که خیټو دی که خیام

شرنګ وې (۱) دنژ دې نه او چو لکی دلرې لرې
دواړو غبز ئې یو شان ې او یو رنګې خبرې

ډك د ظلمه زوره د طاقته د باز پرې
جوړې د مهین او رنګین بوی د ګل وزرې

کومه لار چه احلی خو مقام ئې بس دا یو دی
دلته زر جو ماته دی امام ئې بس دا یو دی

څکه لیونی دی مرورشی الله لله
بل خواته ورتاو کړی داد هوش ققهه (۱) شله

پریو ځی په برا و کړی بتخانه کښې ډیوه بله
پښې سپینې پو لیږه طمعې (۲) تاقی ، له مز له

تانه اور سروردی یوما ولې وژنې اور کښې
اې دسپین او تور مالکه څه مزه ده تور کښې

ولې زمالال وی پروت په خوله کښې د ښا ماد
ولې دې ګلاب له نه اوزبل او نه بهار
ولې دې سندی کړ شاخکی تن کښې دړ نه وکی

غوا ړې ترې چپې د سیند ساز و نه دا بشار
ماله مرګ او ژوند دی تا له تش دڅپې ول دی
اور کښې دې بل کړی ولې حسن الوول دی

او رته دې نیولی یم فولاد جوړوې له ما نه ؟
ښه ! چه زه فولاد شمه نو څه زما چا نه ؟
جسو له فولا دو له جو هر و له کمال له
بس خاورې کیده دی ور کیده دی دد نیا نه
ولې دې ورانواوله جوړ کړی سور محل دی
اور کښې دې بل کړی ولې حسن الودل دی ؟

ډیره اسمعیل خان

۱۹۵۰

(۱) وهې (۲) تتوه ـ بیانګی . (۲) مایوسه ـ له پښو پریوتې .

# حساب

یو خوا لیوانیدی دتیکشروجام په لاس
غواړې د عطارنه روح د ګل خمار د ګل

بلخوا ,, هوښیار شاه،، دی،وه په ګټه په لباس
بوخ،ئي ګرخورا کړ له،هم،،پیخي،،اوهم بلبل

تله په لاس ناسر دی خرشوی مینه حمار
بس د ده ایمان د غه جنت دی نشته بل

بې خمار ه مینه لکه بې نشې شراب
زهر ئې شکل حرام حرام ورنه کمال

بې مینې ژوندون دی لکه بې سره سنار
تنګ تر یه وښکل دجنت حوروته کنځل

ورکه کړه مجنون لیلیٰ محل کښې دایران
ده نه سر محل شو د غمو نو بیابان

تول جهان ته اور ژ ده ته مینه دجانان
وه د ده خندا پټه ژړا کښې د جهان

ده ته د پرداوچنو کښې وناست مستي ژوندون
د ه له وی دوه لارې بومرګي ،او یوجنون

ښه ـ یو حوا خو د غه بلخوا بله تماشه ده
ناسته خان له « نمرود » دی اودبل دپرد ئې نشه ده

دا شه عجیبه شاتې ا نصاف دی د فطرت
ګل له ښکلی بوی دی او ونبر خوار له اشه ده

دا شه عجیبه ښیست پر سنی ده در حمن
هره پرته بلبله ده او نښتې پرې باښه ده

شه و کړی شاه باز یا به ور کیبزی یا به زور کړی
شه دوی، جرس چه وی ژوندی هله چه شور کړی

د غه دی جهان ، د غه ئې چل ، د غه ئې رازدی
د غه دی ساقی ، د غه محمود ، د غه ایاز دی

دغه « وائې » ، د غم او د غه « وخ » دهمه ساز دی
د غه د « خیام » او د « بلال » د خولې آواز دی

ځان مستول مینه او خمار زیات تون
دی دژوند تنور کښې سورا نګار زیاتول

یو دیار د خولې وزې او بل ئې د دولت
یو د «ځان» په سترګو ورك او بل ئې په شوکت

یو ئې مست په شرنګ او په خندا او په سرور
بل ئې په غضب د غور ځنګونو د شهوت

یو ئې په تیار و د غم په لړو د ماښام
بل ئې په سیلۍ او په باران او په قوت

یو ئې په پستو پستو سوالو نودارمان
بل ئې په د تاؤ او په جلال او په شوکت

یو له تیز نیلی، سترګې سرې، سره نور ه پلاس
بل له تنها ئی، رنګین ملکو نه د حیرت

یو له دالماسو محل، سپین، اورون او پاك
. . . . . . . . . . . . . . . . : . . . .(۱)

دوی سره حساب خو لېز څه ګران شان وی
سا په هر جنت کښې لېز عذاب شان وی

ډیره اسمعیل خان

## غزل

هله یار ورته نژدې شوم چه دیاره شومه لرې
هلې پوی شوم په خبرو چه ئې نه او رم خبرې

چه ملنك شومه جانانه خزانه مې وموندله
په زړګی لښې مې برتېوی ښکلې ښکلې ملغلرې

چه مې ګلستان قربان کړ نو د ګلبستان مالك شوم
چال مې هله د پرزده کړ چه مې وسولې وزرې

چه په جام کښې دساقي مې دځوانی وینه کړه ګډه
هله پو رته شو محفل کښې د خمار بخرې

چه په شوق او په مستۍ مې دواړه سترګې ورلوګی کړې
هله هله راته او کړې رسافی سترګو خبرې

چه پرې مسته ځوانی داد کړی چه پرې ښکلې سرکړی خاورې
دهغه وی دی لیونیه! دجانان شونډې شکرې

حیدرآباد جمل

---

(۱) یو فرد کم ښکاری.

# لوږه

چه شي خوله دخوږو سپوره — د دنیا خـوا ږه همـه
ئـې مـدام مـا م د يږي — غو نـزانبـی او قتلمـه .

چه شـی خیټـه ډیره وږي — ددنیـا ال خـو را ګـونـه
ئي په سترګو کښې غم يږي — سيخکـی او کبـا بـو نـه

چه شي سترګې ډيرې وږې — د د نیـا ګلـونـه واړه
ورته مخکښې مخنې کیږی — توري زلفې سپینه غاړه

چه شـی شونـډې ډيرې وږي — د جهـا ن همـه خـو بانـې
ورته وړاندې وړاندې کیږی — سپینې تو ر ي سمې ور انې

چه زړګی د مینې سپور شي — تیر ي تو لې خوشحا لۍ
پکـښې نـه ربی ربـی — لکـه نا و ي په ډولۍ

يمـه وزی داسې وزی — پـه بوه کو کېږ ور کومه
دا جهان او جنت دواړه — پهدووسروشونـډو خرڅـو مه

کښېنـه کښېنـه لیـونیـه — دال شته زوهه کو کار ي
دا مز ې د ې دې نصیب کښې — چه ته څوی داسې پلار ئې؟

آخـر خوله بهدې خوږه شي — کښېنه وايه ګوره ګوره
دقسمت غانبا و ر ي ګرځي — ر اغـو رځی کـډې ته لو ړه

که بها ر کښې د ی ګلو نه — وهیږي دی پهخـزا ن کښې
صبـا د غـه دی راو خـوت — ستوري ښکاري په اسمان کښې

سر و ګلو نو شنو او و له — بيا په لا ړ شي هشنغر ته
په نر و ب عزت به ګور ي — خو ږ و ستر کو د دلبر ته

بيا به غـا ړ ه د تالا و ـه — دسرو ميو ډ ک کړي جام
بيابه درځي په ما لڅو ک ـي — د سحـر او د ما ښا م

بيا به او ترې په يوه — بر ګ او مست هند ک غوايان
بيابه سې پهدجینډې کښې — ما ر مهوه او سر ه کبا ن

بيابه شو ر شغرب دڅو نډو ی — د يا ر ا نو و شتې مستـې
چو پ شه چوپ شه مه کښې مهده — ژ ړ ا ر ا ځله بستې (۲) بسـې

حيدر آباد جيل

(۱) غانبوري (۲) اس دی- بس دی

## دغم لور

لنګه تیاره شوه رڼا ئې راوړه — آدم چه مست شو د حوا ئې راوړه
مرګ چه د خپل ژوند تالاش کښې ووت — ژوندون ئې را د پړاوسائې راوړه
توري چه چغه د کفر وکړه — ډال ئې پیدا کړ قلا ئې راوړه

چه او ښکې سرې شوې شراب ترې جوړ شو
چه غم با با شو خندا ئې راوړه

## قسمت

چه شو کې سوال د پلاؤ وکړی ورکړی دال
اکثر خور کړی په ښکاری د ښکاری جال
چا ته جام کښې د سر و خاورې شکې واچئی
چا له ورکړی د ایر و ډیې کښې لال

څو وبال چه شو کې په صبر صبر تیر کړی
ورله را ولی د هغې لوی وبال
څو مره مار چه وړی شی شوکې دو مره وراچئی
د زمری خطرې نه تیر وی شغال

چه کوم کال حلق راری د باران وکړی
په باران پسې پرانده کړی هغه کال
لیونی نه خفه مشې د رقر بان شم
اکثر وراغی د خره په ځای تر کلال

محمد آباد جیل

## دفریدون دمور خط

زمادواده په دولسم کال په ۱۵ / تاریخ دجون دمیاشتې ۱۹۵۱ زما صرف اویوا ې ځوی فرید و « رستم جنګ » پیداشو - دهغه مورد پینور په هسپتال کښې وه - اوزه لرې په هزاره کښې ناجوړه پرو وم هروخت به مې د کوټې د دروازې په خکښې یو تور بدرنګه توک او سنګین په لاس ولس ولاړو - تول جها تور او تاریک ؤ دوجود ناجوړتیا سره مې روح هم دمایوسۍ آخرۍ مقام ته رسیدلی ؤ چه ناګهانه حبر راغی چه ځو دې ؤشو - ماوې ښه دهغنی ور ته خوبې جومیرات خوړه یې -
ددغې ورځې د دړداو دخوشحالۍ بیان زه شم کولی - خو دړداو خوشحال دواړه انسان ډیر ستو ما کوی او چه آخر مې سترګې دهوش دنیا ته ښې کړې - نو څه وینم چه دفریدون مور راغله او ما ته ئې یو خ په لاس کښې کښیښود داهغه خط دی -

ماد دوړلپوخاورې تاله جوند او جها ن جوړ کړ
خپلې‌منيې دا سې يو ړم بل مې تاله جانان جوړ کړ

دا چه زه دو فا ړکه د جنو ن جها ن له لاړ م
دا مې لا ل هغلته و مو ند د همه لا لو نو ښکلی

دا ز ما د غر و ر نښه د هغو ګيلوڅوا ب د ی
چه به تا په ما ښا مې کښې ما ته کړ لې غا لې غلې

دا ثبو ت ز ما د مينې دا يما ن ا و د و فا د ی
داز ماروح‌چه‌روښان‌شوددې‌ستر ګې‌يې کړ ې بلې

دا تصويرز ما د ژ و ند د ی‌څه خنداده‌څه ژ ړ اد ه
د شهبا ز د وز ر شغ د ی بو ست سر و نه د بلبلې

دا ثبو ت د شا ه د مينې دا ز ا ر ی د ه د غلا م
دا ا نعا م د ټو لې ښکلې د همه ؤ ر نګين جا م

دا تعبير ستاد خوبو نو او ز ما مخ دا رما ن دی
ماجو ړ کړ ی دخپل‌خانه ښکلې‌عکس‌ستادځان‌دی

په صحرامې ؤ خور کړی‌سو رخاډ ر د ګلستا ن دی
هره‌ساه کښې مې ليکلې نو م د مينې د جانان د ی

دا چه زه ستاد خوبونو دجنون‌تا لا ش کښې لاړم
ستاخانی‌له‌مې جوړ کړی‌ستاره ښه‌غونډې‌بوخان دی

دا چه ماستاپه‌وزرونو کښې ا ر مان د عقاب وليد
دا عقاب مې‌ستانه‌جوړ کړهم‌عقاب هم‌يې ارمان‌دی

داسرې سرې د سا قی شونډ ې څه‌مستی اوڅه خيام
دا په سوز کښې ر نګ د سازد ې دممبر د پاسه‌جام

داده‌نيست،په شاملات کښې ما اجل ته کيښود ځلې
دا خو ما د با طمعې کړ ې پر و ن سر ه بدلې

داچه زه يور نګين خوب شم د تالا ش او د ارمان
ستاپه تورتا ريك محل کښې‌سپينې‌شپې‌ش شو اې لمې

ماد دو و لپو خا ورو تا له ژوند اوجهان جوړ کړ
خپلې‌مينې د اسې بوړم بل مې تاله جانان جوړ کړ

ما کړد او پهیو ا رمان ستاخپل ژو ندون تمام تمام
ماخپل هوش کولال له ور کړ چه ترې تاله جوړ کړې جام

چه ته ۀول مجنو ن مجنون شوې زه همه لیلالیلا شوم
چه ته ر نګ شوی او خیام شوې زه شراب زه ګل اندام

چه ته طور شوې او موسی شوې زه دنور برق اور نیاشوم
چه ته شور شوې او ارمان شوې زه دوصال ګل سمام

ته چه شوې د اور بڅری زه هم سره لمبه داور شوم
چه ستاز ړه په تـا لا ش سرشو زه شوم لاره زه امام

د اچه سا شوندې شوې تېز ی دمستی دسروشرا بو
د ا خو ځکه زه جا نا نه هم شرا ب شو مه هم جام

نا چه سوا ل در نهاو کـړ دبها ر صبح صا دق شوم
ته مین چه په تیا ره شوی زه د ژمـی شو م ما نبا م

چه مانو م د ,,عزا،،(۱) واخست ما کړه مرګ ته ږ یوه بله
چه تا بیت د طو ا ف و کـړ نـو ما و تـا ړ ه ا حرا م
ما د دو و لپو خا و ر و تا له نو ر ا و بستا ن جو ړ کړ
خپلې مینې د ا سې یو ړ م بله چې تا له جا نا ن جو ړ کړ

پېښور ۱۹۵۱

دي

د ا شو ندې سـرې د ګل غو ټۍ
دا شو ندې سر ې ویې و ړ ې
د اشو ندې سر ې قطر ې د نا ز
د ا محبسم مکمل نیا ز

تشو ا و ؤ چوز ړ ګو ته د ا
ر نګ او مستی او ارمان خوږئي
ما با ندې ښې او خوږې لګی
ما ته نقشې د جا نان خور ئې

(۱) ,,عزا،، دمکې دعر بو دجنګ بت

د خوژوندون مست شوېدی
مرګ پورې مسخرې کوي
دا خو ګلاب خندانه دی
بل پسرلي ته اسرې کوي

دا خود تورمرګي په‌مخ
رنګ‌او امید ددنیا خور وي
دا خود مجنون سترګو ته
ښیست‌او‌سنګار دالله‌خوروي

بوه دی د وی د آدم په راز
بوه په تلود سوز او ساز
تو لې قیصې ئې یادې دی
تو لې قیصې د راز و نیاز

داد عیسې د لاس په شان
ژوندا و امید او خنداخوروي
«بټ» ور ته ښنګه و وایمه ؟
ما ته چه نورا و رنګا خوروي

## ټوټه

مابه شمع شمع کړله تاکړي جوړ رانه پتنګ
تلمه ښکار له د کبوړو تاور پیښ کړم په نهنګ
ماد قصته وي ملنګ یم تار ښتیا کړمه ملنګ
ما پوښې کړې د تورز بو تا مې کورله راوړ جنګ
زه خوغ‌بر کولې نه شم په ګیلوته خفه کیږي
(خونـ)حقه‌د اده لویه‌خدا یه ته په ټوقونه پو هیږي

حیدرآباد‌جیل

## غزل

مینه مینه مې کوله حبرنه وم
چه‌دورځې‌مازیګراو‌ماښام‌هم‌شته

لکه‌زر که‌دبسرلی وم‌په‌چړ چقو خبرنه‌وم‌دښکاری سره‌دام‌هم‌شته
دنیاز بینې‌ښاپیری‌په‌بستر پروت‌وم حبرنه‌وم‌چه‌رقیب‌مې‌په‌بام‌هم‌شته

دساقی‌په‌سخاوت‌باندې مدهوش وم
خبرنه وم تشیده ئې دجام‌هم شته

سپینه شمع دمحل‌په‌خندا وائی در نها سره دسو لو سمام هم شته
داویل‌لیونی‌ډ ک‌درباب‌له‌لاړه آورو بل‌چرته‌یوښکلی‌مقام‌هم‌شته

ځوږ رخسو چه دملادروع معلوم کړو
دی و ئی هلته مستوړ انتظام هم شته

حیدر آباد‌جیل سند

## ډنډ کښې

ګوره بلبل په پنجره کښې جوړ
لوی یو جهان د ګلو نو کړ
مست شو صحرا او په خوب کښې ئې
ډک ټول جهان دسیند و نو کړ

دا روحانی کار خانه زمونږ زوراوستم‌نه،خمار جوړ وی
دالیونی شان ځیګر زمونږ او ښې پیبې تر‌پنه‌هار جوړوی

دامصور په خپل رنګ مسرور ټول جهان مست اوسرشار وینی
ډنډ کښې چپې او حنداد سیند شاخکی کښې مخ‌دآ بشاروینی

ګوره بلبل پنجره کښې جوړ
لوی یو جهان د ګلو نو کړ
مست شو صحرا اوپه خوب کښې ئې
ډ ك ګل جهان دسیند و نو کړ

ورته‌بسرلی‌اوځوانی‌شومخکښې لیونۍ ورځ او ر نګین‌ماښام
خوا کښې ګلاب‌ئې‌په‌مستې‌تیرشو شوندو کښې‌رنګ‌او ګوتو کښې‌جام

وړه چینه شوه چرته روانه دژونداو‌مرګ‌ئې‌شروع کړ ساز
ژوندون‌ژوندن‌توعشق‌رازرغون‌شو ښیست‌پټ کړ‌شال کښې‌دمینې‌راز

بیاخزان راغې ګلونه لاړل ستار شو غلې او شر اب کم
ځوانی رخصت شوه خندا نایابه دعا ا وږ ده شوه او رباب لم

زړه‌خپل تخت ور کړه سره اوسوداء له وحشت شو باد شاه اوژوندون مرئی شو
مستوړ جنګ با یله توره ئې کیښوه سر و ر غلام شو جنون مر ئی شو
واړه ر نګونه تیاري کښې پوړ شو صبار خصت شو او ما ښام راغی
او میخانه شوه دژړا ډکه ساقی رخصت شو او امام راغی

څو نا ګها نه وړه لو لکه
په‌خوب ویده شوه او څوب ئې و لید
نوی پسرلی واو سره ګلونه
دعشق ایمان او نر ږوب ئې و لید

دخپلې مینې څو اب ئې ولید نوي لولکې نوی ګلو نه
روښان ئې ولیدیو نوی رنګ کښې خپل ارمانونه خپل امید و نه
مصور په خپل رنګ مسرور ټول جهان مست او سرشار ولید
ډنډ کښې چپې او خنداد سیند څاڅکی کښې مخ دآبشار ولید
ګوره بلبل په پنجره کښې چو ړ
لوې یو جهان دګلو سو دې
مست شو صحرا او په خوب کښې ئې
ډک ټول جهان د سیندو نو کړ

تهنديا نی‌جيل

## دوزخ

دا نسا ن د نطر ټو ل دی که دا تو ر دی که داسپین
داسا ن دژ بې‌حیا ل دی دا سپلمې او انګبین
دا آواز زما د ګو بو پوست مې ونډ نسکی مهین
دا زما د ځیګر لو بې ګل ا بد ا مه ا وشیر یس
دا ګنا ه زما د زړه ده دا ګلو نه نا ز ین

دا زما څو دئې څو ړ کړی
چا له بحر د شرا بو

چا له بحر د زمز م دی یو غمګین ما ښا م د غم
چا ته وړو لې سپینه شمع له سپوږمۍ لره ر و ښا نه
څوك پیغام دجبر یلواوری له سرو شو نډ و د جا نا نه
چاته سو ر په وینو تاج شو چا ته تو ر په تیار و تخت

چا په سرد صلیب و لید | چاپه سور ر یښمین ما لښت
دموسی په شان شوك سې(۱) کړی | په مړ ه بت کښې مخ دیار
شوك ترې جوړ ویره ژړا کړی | شو ك تر ې حسن اوخمار
شوك د گل د ما شوم مخ نه | د آشنا شونډې کړی جوړې
چا په خو اد نرگس و موند | چا از غو کښې د کر و ړ ې
خوش نصیبه شوك وو لاړه | په خند ا غوټې ې د یا ر له

چا د نا و ې د جوړ ې نه
کفن و شلا و ه د لد ار له

ر بـه ر بـه ز مـا ر ســه | لیو نی شو م په فکر و نو
خنگه خور قهر اوغضب کړم | په پسر لی او سر و گلو نو
خنگه غو ږ کیږ د م ملا ته | تـو را نـی بلبـه هـیر ه
خنگه ستادنور او ښیست نه | بد ر نگی تیا ر ه چا پیر ه
د خند ا د سپین صبا نه | تور مانښام اولحدجوړ کړم ؟
د ا نسا ن د ما یو سې ړ نه | سر سرور داند جوړ کړ م ؟
د فـقیر د سلو ســو نــه | دباد شا ه خما ر کړ م جوړ
ددوزخ د اور او ز و ر نه | ستاښایست سنگار کړم جوړ
خنگه و منم نا جو ړ کړ | دا جهان او آسما ن د ې له
چه خیام روان په زور کړی | طوا فو نو د کعبې لـه
دمستیې داد ومره ډك زړه | بس پید ا ؤ و سو سې له

جوړ د ې حسن یا ر ا نه کړه
د جـــز ا ســـز ا قـصـې لـه

تا کړه جوړ دخپل ښایست نه | یــو حـسـین یـا نـا ز نین
ستا د ښکـته بنو سو ر ی | هر مانښا م پوست او ر نگین
تاخندل چه د گـلاب ر نگ | د او لـکې و ز ر یو و ړ
ستاپه لاس«خیام»په جام کښې | بې خو د ی او د لبر یو و ړ

خنگه غم غنی له ور ړم
دقـیامـت او حسا بو نـو
کر که زړه کښې د بلبلې
د پسر لی ا و د گـلو نو

(۱) عـوامی اصطلاح ده یعنی ګوری او کشف کړ ی .

ځنګه شال دوبنځي خو ر کړم — د لیلی په سپین جبین ؟
د حبش د عشق لیو ا له — ښاپیریـ کړم د مـا چین ؟
ځنګه لاس کښې محبو با له — خنجر و ر کړم دغمـا ز ؟
ځنګ‌دوپرې کوټې کښې‌دوب کړم — دمینو ستر ګو ر ا ز ؟
ځنګ جهان دحسن ډو ب کړم — په یو شا څکی دتیار و کښې ؟
ا و د شمع ر نـا ځنګه — .کړ م بد له په ا یر و کښې ؟

ر به ر به ز ما ر به
لیونی شو م په فکر ونو
ځنګه خور قهروغضب کړم
په پسر لی او سر وګلونو

خانپور جیل

## جنت (۱)

ستادرحمت‌څه‌حدهم‌شته‌دی اې‌نې! حسابه ! اې بې‌پایانه !
ستاښیست‌اومینه‌څوك‌شي‌تللی‌دستر ګو‌په‌! روك‌دارمانه !

دملا ستر ګې دقهر ه ډ کې را ته قیصې کوی ددې داوزور
دجانان‌شونډې‌د کو کو وزې‌وې‌راشه‌او ګوره‌جنت کښې‌اور

مر ګ بلې‌ستر ګې‌اوخورې‌پنجې‌را ته خوځښي لحد نیشت‌او عدم
شیطان‌اومـلادواړه‌په‌یو آواز وئي ستا ګناه‌ډیره‌ده‌اورحمت کم

مشرك‌ولاړ همسا‌په لاس ، قبا په و لی‌دستار په سر
لا ټوډ زر ي دبلبل ایښې ښیښۍ‌شهباز‌ته داړلم سر

ښا پیرك مشر دی د کا روان د رڼا‌ښیست اوسنګار لټوی
سامر ی ژاړی‌دزروبت کښې‌ژوندون‌مستی اوخـمار لټوی

ګو نګټ‌دسوټو‌په‌ډیریـ‌بورته زیړې لولکې‌ته‌د نوربیان کوی
چنجی‌دخا ورې په ممبر بره ،قیصې دحورو اودآسمان کوی

(۱) په‌جنت ما نور همدوه‌درې اوږده‌اوږده نظمونه‌لیکلی‌دی مګرکوم‌په‌را شی‌دا نسان‌په دماغ‌کښې دجنت تصورډیرعجیبه او لطیف‌دی خوعامو انسا نان‌دیوتصو ردپاره‌هم دومره دې د نه دی هضم کړ ی‌لکه د جنت دپاره

ځکه په څېر زه له جوماته لاړم په لوري د میخانې
دې خپلو سترګو ړوند کړم تالا کړم هم شرابی کړم هم لیونې

خو چه په بدو او بدرنګو خپل ایکه د سکور لوګی او اور شمه
چه سرا او تال مې تباره فنا کړی د مې وسی مریادژړا او شور شمه

و ځان نه وایم او تا نه وا اوروم دا د مجبوره زړګی بهانه
ستا نبیست او مینه څوک شي مللی ای بې حسابه ای بې بهانه !

خانپور جیال

## زړه

ره یم زه یم رنګ سرود او شرنګار ره یم
د جانان سترګو کسې مېړاوی خمار ره یم

دا تعبیر زما د مست زړه د تلاش دی
یار زما د زړه ارمان دی دلدار زه یم

دا زمار زړه چه د نښیست اور سګ شی وزی
سپرلی سره ګلو نه را شي بهار زه یم

دا چه زه شم د مسکو شونډو لیوا له
لیلی جوړه کړم د حسن معمار زه یم

دا خو زه د ځیګر سوز په هوا سور کړم
روح، مطلب، معنی، اواز، د ستار ره یم

چه زه نه یم بې معنی جنت آسمان دی
د جهان د سوز او مینې مختار ره یم

دومره پوی شوم په دې دېړو کی عو ندې ژوند کښې
یار زما کمال، کمال د دلدار ره یم

خانپور جیال

# پسرلی

بيا پسرلی راغی بيا يې پيغام راوړ
د رنګونو، ګلونو او رڼا
شو ساقي موسکی ډک ئې جام راوړ
د مستۍ، خوښۍ، او خندا

يو صبا راغی، يوه شپه لاړه
د تيا روو بربدو، او ارمان
يو زيړي ګل مي ما ښام ولید
سلامونه ئي، کول د جانان

دا د ماغ زما چرې نه مې
چه د ګل خالق به سفر کړی جوړ
څنګ خوږې بېرې زما کړېکې لګی؟
چاچه ماله سرګس او دلبر کړه جوړ

دا شينکی چمن، دا ګلونه سره
دا مست مست شانې مستانه ما ښام
دا ثبوت د ساقي د مينې دی
دا د سرو شرابو بر پوره جام

د ساقي چه ستر ګې خمارې دی
دا خمارئې ما ته جوړې کړی دی
دجانان چه شونډې دلداری دی
دا سنګارې ماته جوړې کړی دی

داسپوږمۍ اوستوری اومست ما ښام
مشغو لا زما د غمونو ده
دا په ما مين دی مالك زما
ځکه ږکه د نيا د ګلونو ده

پسرلی څه دی جانان مست شوېدی
هره ساه او ذره کښې خپل نور خوروی
په ګلونو کښې خپله رنها خوروی
په نسیم کښې رنګونه د طور خوروی

چه تر شو یوه نظاره د رنګ
دغور ځنګ دمستۍ په انسان کښې وی
تر هغې به دا زه و نه منم
چه اورونه په هغې جهان کښې وی

زه جوړ کړی نه یم سزا له یار
زه ئې جوړ کړی یار انې له یم
ما نه مینه، خندا او مستی غواړی
که جوماتکه بتخانې کښې یم

بیا پسرلی راغی بیا ئې پیغام راوړه
د رنګونو ـ ګلونو او رنها
بیا ساقی راعی ډک ئې جام راوړ
د مستۍ ځوانۍ او خندا

بیا ئې سروګوتو کښې ونیوه
لیونی ته جام د غمونو ډک
د ژوندونه ډک د فراق نه ډک
د وصال د رنګینو خوبونو ډک

## ژوندون

لکه کال کښې پسرلی او خزان
لکه سیند کښې چپې او غولې شته
لکه تله، خلا صیده د مستۍ شته
ژوندون څه دی یوسیندی روان
بیاتش شی چپې ئې وړې شی
اول هر یو غر ځنګ کښې ورانی کوی
اول هر شوک ور کوی پوره کوی ځان

لکه ورځ کښې صبا او ماښام
لکه ژوند د مرګی دی غلام
تشیده، ماتیده، د هر جام
اول لوی لوی موجونه ګټونه
غولې لېزې شی ډېر شی ډبونه
ورانوی غورځوی لوی لوی غرونه
بیا د بل شی روان کړی نهرونه

دریابونه لوټ لوټ کړی فنا کړی | غورځنګونه لښتي کړی تالا کړی
یائې مرغو ک دپښو لاندې دلوی | یامرئي شي خدمت د هرچا کړی
ځان کړی‌ورک خو ګلاب‌او نرګس کښې
په ررنګو بو سیند وبه پیدا کړی

---

ژوند ونشه دی ؟ یو ماعدی لوئیبزی | ور کیدلدی‌دجنیست ر یا تیدوله
حپل‌ژوندون‌خپل‌سنګارورکول دی | سوځیدل‌دی ژوندون حوریدوله
د انګور په شان ورکـ ا و فنا شه | چه خمار شي دچا ستر ګو سر و له
د منصور په شـان‌وڅـېژه د ار ـه | ـها نه لښو ه ر سـید و له
ژوندون‌شه‌دی‌یوحوب دی لیدی شی | د حندا او ژړ او ا ک د بـلـد ی
یو دو ر ان د سحر او ما ښام دی | دما ښام اوصبا و ا ک د بـلـدی
بو ر نګین شان محل د هوا دی | د هر ګو ټې د هوا وا ک د بل دی
ما ځ د ل په ګلو بو زه بې یم
غم ر ماد خند او ا ک د ل دی

---

ژو ندون شه دی یوساز د غبږ ېږی | کله پو ست ،کله ز یر ، کله بم
کله ورسو ځیده شو ر غو غاشی | کـلـه غلی ، ولا ر ، شو مه دم
کله‌شر نګ د ګو نګروشی‌خمارشی | کله یخ ا سو یلی او ما تم
کله تا ل مسما نه‌د خیا م شی | کله سپو ر ما ښا مو سـه د غم
کله‌وی‌تریخ که وی حوږ تېریدی شی
ژو ند ون شه‌دی یوخو ـدی لیدی شی

د ار الا امان
په پیر و ل (١)

# بله‌لار

ر حم وقیر له رو ا باد شاه له حرام دی | شاعر له ګوټ د ر مزم د میو جام دی
بخل د میني کمال خون د انصاف دی | سخاوت شان دخان مرګ د صراف دی
رقیب‌له شور او ما نم یار له وصال دی | یوله‌دومیني خاشکی او بل له تـه لال دی
ما له د ګند کنده لا له ته ما م دی | یو لـه د مرګـ پیغام بل‌ته دوام دی

---

(١) تفریحي رخصت دجېل نه.

دعجیبه ژوندون عجب کاروان دی
دې کوز دوکان کښې ګټه کښې زیان دی

یوناست محل کښې غمګین حیران دی
بل ته ایرو کښې وې پروت ایران دی

داورک کاروان کوم خوار روان دي
ړوند ئې، نظر دی وچ ئې ایمان دی

ظالم، جابر ته سجده دعاده
هیر ئې. عمره رحیم رحمان دی

دزوراوویرې بت ته نسکور دی
ورک ترې د سینې د نور مکان دی

د بل د وینو ډې پلاس کښې جام دی
تنګ ئې جومات دی ړوند ئې امام دی

خوزه شه وګورم چه وینم په تیارو کښې رنګ دیار
دګلو نور ژبه د وکښې امید ونه د بهار

دتاوان قلا کښې پټ دجنون ناوې مستانه
رنګ محل ته نه شم تللی د صحرا نه دجانانه

ماله غم ماتم دیار نه دی غم د غم تعویذ دی
ماله بل ګل ته کتنه بې شرمی ده شوق د یېزدی

هغه غم چه مستول کړی د نامیانو نه لذین دی
زلیخې ته تور ځنګل دی سور محل که د عزیز دی

ماله بله لاره نشته د جنون او د جانانه
کښې خو شبه می حنده اده ډېره ډېره دژړا ده

دغرسرډیره اسمعیل خان

## قسمت

زه نر مه خته یم لاس د کولال کښې
یا به د میو جام شم او یا کوزه د جمات
یا به یو ګی دزیارت د میخانې فانوس
یا به دیران تیکری سوی او مات
ځوانی مستی ژوندون د دل د لاسه دی
زما نه وس شته او نه مې واک
شیخه! په باغ کښې د یار د کور
کوم ګل پلیت کړمه او کوم پاك

خنګ ملامته زه په ګناه شم؟
چه وس قسمت او تدبیر د بل دی

خنګه ستو ما نه زه په خندا شم؟
خوب دی د بل او تعبیر د بل دی

دا مې ګناه ده مین په ګل یم
نه زه د ګل آقا نه د نظر

نه مې د واک دی خمارې سترګې
نه اوږې شونډې مدهوشه سر

ما نه دی اېښی دیار نظر کښې
پسرلی ګلو نه او سور خمار

ما د خپله نور نه دی جوړ کړی
شرنګ او غورځنګ او رنګ دیار

ما د صبا پـه پسته رنـا کښې نه دی خور کړی د جادو ساز
چا شیرین نه ، و ه فرهاد ته ښولې چا جوړ محمو د کړ خان د ایا ز

زه نه پو هیږم چه چا رو ښانه
د زهرا نور کړ په مخ د لال کښې
زه یو تصو یر یم د بل د ګو تو
بې ز با نه ختپه لاس د کولال کښې

یا به قسمت وی یا به دوزخ وی او که وی دوا ړه نو ته رحمن یې ؟
نه شم ز غملی ، نه شم منلی چه ته جلاد ی او هم جا نان یې!

خا تپو ر



ترا وسه پورې مو ذ ژ و ند در نې در نې مستلې و اړ و لې ر ا و اړ و لې د کومې و ر ځې نه چه ا د م له قدرت هو ش و ر کړی دی -داسوالو نه دهغې و ر ځې نه را ر وان د ی ،هرسړ ی ورله د خپل طاقت او پوهې په منا سبت ځوا بو نه ګو ري ، ا نسان سره د هر سوا ل ځوا ب شته ولې د مرګ ځواب نه لري د جها ن ا کثر ې فلسفې او قول مذ هبو نه دعز را ئیل د شاهنشا هیت بر خلا ف بغا وت د ی قو ل د د غې تو ر ې کمدې نه تښتي ځو ک یو ګز ځو ک یو میل ا و ځو ک ز ر ملیه ځو ک د غصې څخه و و هی لکه ما چه په ځوا نې ښې یو ه ورځ و هلی و ه

## خاورې

چغې وهی ا جل،ملا ته آو ر ې که نه آو رې
تشه خاوره نه د ی غنی څنګه به شی خاورې

ا و یا یو ه بله و ر ځ چه د لحد په تو ر د ر ز می د مستی ، و ر شا ل و بړ کړی و و

## مرګی

مرګی د ې را شی چه کله ئې و س و ی
ګل به مې لاس کښې وی ا و یا به ا س و ی
یا به قو یک و ی یا به قلم و ی
ړ و ب به خند ا کښې د د نیا غم و ی
چه څه مو بخت و ی د و مر ه به بس و ی
مرګی د ې ر ا شی چه کله ئې و س و ی

☆ ☆ ☆ ☆ ☆ ☆

چه جام کښې ګوټ ګوټ شر ا ب ګمیز ی
پسر لی خلا صیږی ګلا ب ګمیز ی
ر نړا د شمع کښې د سحر نور را غی
کو ر د بلبلو ته نوم د باتور را غی
ستار کښې شرنګ څخه د ما ښا م نښته د ی
سرور په ستر ګو کښې د خیا م نښته د ی

ښکلي نه ښکلي، د مست نه مست، د سور نه سور ګل آخر خپلې حیرانۍ او غمجنۍ ستر ګې د خزان یخو او بې رحمو بادونو ته پورته کړې، او د خپل ژوند د شروع او خلاصیدو تپوس ترې و کړ ی، او دغې ته وایو مونږ فلسفه، زه مرګ یو ورځ په مخه کړم او د خپلې مور د سینې نه د خاورو هغه ډیرۍ له بو تلم کوم ځای چه په یو د ښت او بیابان کښې دهغې هډو کې پراته وو، ماچا رچا پیره و کتل ستوغ درب، سره خاوره او شنه کا نړی وو دلته نه د ګلو نو چمن وو، نه د بلبلو باغ، دې د بدر نګۍ په سمندر کښې د حسن یوه قطره هم نه وه، زه د خاورې دیو ډیرۍ خوا کښې ودریدم یوه ماته شنه خا زه وه. شل د یرش کا نړې ښکته پر اته و و، نورې تو لې وچې وزې تېزې خا ورې وی، مرګ هم را و ر سید او شا ته مې د آسما ن نه اوچت ولاړ ؤ خو ما سر او چت کړ خا لق ته مې وویل:

زه دهغې لال زه دهغې د ستر ګوتو رو مه
زه به دهغې په سینه تل و یده نسکورومه
اوس ئې ښکته ښکته د مزار کانړو ته ګورمه

خاو رو کښې هغه ده چه ئې زه د زړه هلال ومه
هغه لا ل شو خاورې چه ئې زه ورو کی لال ومه

لاړ مه آسمان ته ما وې اې د جهان مور سپوږمۍ!
زور د مر ګی زیات دی که دی زیات د مینې زور سپوږمۍ؟
اوری په لحد کښې څو ک د سوی زړ ګی شور سپوږمۍ؟
مو ټی خاورې څنګه پټ د حسن یو جهان کړی؟
یو پو کی د با ددا چمن څنګه بیابان کړی؟

خو له مې نه جوړ یږ ی چه ظا لم و و یم ر حمن ته
(خو): ـ مرګ چه د جهان بادشاه کړم څه و وایم ځان ته؟
و لې د ر و ا ز ه د علم لر نشـو ه ا نسا ن تـه؟
سیا لۍ د ځان ولې کړ م چه ز ه د خا ورو سیا ل و؟مه
هغه لا ل مې څه شو چه ئې ز ه و ړ و کی لا ل و مه

---

خو د ژوند ښا ـ ت بادی، چه تول عمر انسان سره د ده د خلا صید فکر نه وی، کله کله ئې دا تولې غټې خبرې هیرې شی، او په خپل ماحول کښې دوړوووړو څیزونو په تما شه شی او دوړو وړو شمعو په تالاش کښې ځا ن دهغې لوئې تاریکۍ نه وتښتو ی،
د حیدر آباد سند په جیل کښې زما د تو تې تو تې مستقبل نه علاوه ډیر نور څه هم وو، د چکۍ د دروازې په خوا کښې د میزو جالې وی کله، نا کله به زمونږ د احاطې په کیکر کښې کوترې کیناستې، کله به مونیمه شپه کښې د تارو، چرچق واورید. کله به تور کار غه لکه دیو جمهوری

وزیراعظم دشور او ځل نه ډک په دیوال کیناست، دبمبې خواله به ماښام کښې چیند خه راغله، ددیوال دپاسه بهداوښ برېبر راغی، او په دغو ورځو کښې زه ډیر وږی تبږی اویوالځېو مړنو مابه دې ټولو سره خبرې کولې میېزو ته به مې خپل دتیلو بوخ ساګ غور ځاوه او کوتر وته به مې خپله دباجرې ډوډی چورې کوله، داروان شعرونه مادهغوی پهمجلس کښې لیکلی دی که زه دهغوی په طبیعت نه یم پوه شوی نو معافي غواړم زه دانسان هغو کی لرم اودچیندخ پهځرمن کښې نه شم ننو تی -

## اوښ

لکې دې دخرچوکې اوغړا سکه دې د بتې
کوږ وږاووران ویجاړاودو لس نیم ګزداوچتې(۱)

پهغو زو کښې عرب ئې او په شونډو کښې حبشې
که پاؤ هم ځو ک دراچوی ور ته ته شغې اپلتې
ډیر زیات بې نوره ښکارې ستا په پوزه کښې مهار
د دې و مره او چت سر کښې دپستې نیستې رز نار

نصیب کښې دې چڼه شنه نه اوربشې نه شلتې
بس لوی درا نه بارونه کیجاوې تغرې کښې
ستا ستر ګې دشاعر دی، تله دلچک دنواب
په شکال معتبر معقول ملک ئې د نیستې (۲)

خندادې زړه کښې ښته په ښېرو دې تل خوله تو ره
بوډا په هغه ورځ شوې چه پید اشوې ته د ډوره

مستی وچه بې نوره او ځوانی دبې سروره
غو زو نه د نیلی تش د نیلی دخیال غروره
اوږدې ښې دی دډینګ له توپ او تو له بې خبره
دقبر په شان ملا دې دمر کی په شان مجبوره
ته ټول نا کام نا کام ئې نه رنګ وېې نه خمار
همت او جوش دې نشته ګوځه وږی تبږی خوار

(۱) اوچت ئې (۲) نیسته دهشنغرآخرکلی

په خيټه دې ځان ور کړ ځکه پوب سپک او دوو س شوې
مين په پيکو ړې شو ی ځکه پا تې د جلو س شو ې
جنون ښند ا دې و ر کړه ځوځا نو پـه بـد ل کښې
دحسن باد شا هۍ کښې دژوند و ن و ړ ې جاسوس شوې

تا ښيست د ا ر ما ن و ر کړ ، بد ر نګو ۍ کښې د ژ و ند و ن
تـا و ر کړ ه په قيپر و ، فـلسفـه د ا فـلا طـو ن

ته رور شوې دخر ه پرې دې ښو ه و ر و ر ی د ز مر ی
تا غر د مو سی و ر کړ په کو ځه د سا مر ی
تا لی د يز يـد و ينـې و يـنې نـه مـر ګ د حسين
په ژ به دې شر ا ب تر خه ، خو ا ږ ه لګی تـر ی

ته نن په صبا نه و ر کوی ته نه ئې جو ا ر ګړ
د ا ځکه مها ر قيټ کړ ، ستا د ټو لو ا و چت سر

ا ې ا و ښه ، غټه ا و ښه ! ته ئې وړ و کی د ميېز ی نه
اس چند ه که ز مر ی شی ، خو و ير يېز ی د لر ګی نه
تر هغې به و ير يېز ی ، ا و ژ ړ يېز ی ا و ګړ يـېز ی
تر کو مه چه و نه با سې د ې طمع د ز ړ ګـی نه

دې طمع ستا نه ډ ير ا و چت سر و نه کړ ل ر ا ښکته
د سپينې شهز ا د ګۍ په سر خو ر وی د ډ مې کته

د ا طمع مر ې ا و يخې کا ندې ستر ګې نر مـې نر مې
د ا طمع حر شو ی با ز ا ر کښې شو ندې ګر مې ګر مې
د ا طمع شهز ا د ه کا ندی غلا م د کو ر د و ينځې
د ا طمع د جنت حو ر ې له ستر ګې کړ ی بې شر مې

د ا طمع شهز ا د ګۍ کړ ی د مر ئې سر ه نو کر ه
د ا ډ ير غمی ا ير ې کړ ی ، کړ ی کو نجکه تر ې نه بر ه

د ا جو ړ ه د عذا به کړ ی د تو ر کو هی کو تر ه
دا ژ ه نه غم ر ا غو نډ کړ ی ا و خند ا ځوا نی د سر ه

دا جوړه د کعبې نه کړی منډې د سوداو زیان
دا ګل خاوري ایرې کړی مستی بوسی د عنبره
دا جوړه یی د عیسی نه مقتدی د سامری
د ږمې په پښو خوړ کړی نظر و نه د ابری

ای او ښه حواره او ښه بې ښا یسته بې جماله
ای وزیه د څو ځانو بې خبره د کماله
ته ئې لو ږه او تنده نه سرور ئې او نه ساز
هم دغه دی داوښ او د آدم د فرق راز

# ګوتره

د جنت مرغه کوتري!
که پسرلی وی که خزان
شپه او ورځ په «ققو ر» ئې
د یاری مستې قیصې کړې
دوه دانې کړې چرته پورته
د پیر یا نو په کوهی کښې
اې د مینې لیونیه!
د محراب د پاسه تاخ کښې
پښې دې هره ورځ سرې وی
تل نشه ئې بې شرابو
خوش قسمته بې حبره
د نیکو د ثوابو نو
د هکوکو له جوړه شوې
ساسره سره نری نوکونه
نه دې جنګ نه دې غصه شته
نه دې چل د هوکه شته
الو ته دې هم د سیل دی
که بوړاشې هم پښې کړې

د غم درده بې خبرې
ستاوی مستې بازیګرې
د آشنا په ننداره
د جومات په مناره
بیامستی غوبمې شر(۱) وکړې
لمړی د ښا پیر وکړې
بې ګناه او بې آزاره
کوکې احلی د د لدا ره
هره ورځ په تااختر دی
مدام حواکښې دې دلبر دی
د دوزخ نه، د ملا نه
د شرمو نو د ګنا نه
ستامینو که سې آزاره
ړک د ښیست او د سنګا ره
سوچه مینه بې نفر ته
یاری پا که بې علته
د مستې د باز یګرو
د وړو کوتو تکرو

(۱) شروع

غونډې ستر ګې دې معصومې        د ر ښـا ا ښا ر ه ډ کې
پیمانې د ســر و شـر ا بـو        د خـنـدا د یـا ر ه ډ کـې
کاش چه ز ه هم ستاپه‌شان        اې کو ترې ! مستا نه و ا ی
چه نه غم وی نه ار مان و ی        بس‌خنـدا ا و یــا ر ا نـه و ی

## چینغه

مخ‌د ې دشیخهو په شانې نه خاندی هـوښیـار د ی
ښکلی د ې اوا ز لکه د ژ ړندې دغـر ار د ی

ستر ګې ښـې ښې‌نغې بغې تشـې
چغه دوه منی غریبه توره دوه اوربشې

حوله ګېنزه وزه لوبه اوزده اووازه ویشـه
زردې‌زېږ ګې‌خورشی‌دنکاچه کړې‌راپلیته

ښه دې چاتی‌ر لوبه‌او پلنه دلالا په شان
ا ـبې‌دې‌پایه‌ار نې‌سرپوزمې‌دنتولا په شان

توپ وهې تول‌نه کړې څه بدرنګه دې‌رفـتاردی
ښکلی د ې آو ار لکه د ژ ړندې دغر ار د ی

ا وسې په اوبو ګېنې دتېخ‌ار دملی‌په شان
ګېنې‌دې‌دسړی‌هسې کانه‌دمار‌مهی‌په شان

ګرځې‌په‌پټو ګېنې‌دتولی او دلومبرهسې
توپ‌دې دملخ‌په شان غوتې‌دنا کو کړ هسې

څه‌او‌به‌په‌خاوره‌شوې‌څه مېزه‌څه ګـوږې
کله‌دې‌به‌ستر ګو ګېنې‌چېچ‌وی کله دوږې

ر نګ د ې بې نمکه نه دخزان نه د بها ر دی
ښکلې د ې آ و ا ز لکه دژرندې دغـرار د ی

شړپ کله‌پیانک ګېنې کله‌شړپ‌دلیښی‌غاړه ګېنـې
مچ ماشې‌چه‌پیښ‌شی‌خیل‌خانه‌ورله‌ویجاړه کې (۱)

خوب کوې‌په‌خلوروخوږمستی‌یاری او بو ګېنې کوې
اوسې‌په‌تیرا ګېنې‌خوبچړ را وړل‌پبو(۲) ګېنې کړې

---

(۱) ګړې (۲) دپېښور خوا ګېنې ګلی‌دی پکښې مشهور ژیارت‌دی

پنجې د ې دبڼې اولینګکی د چرګوټی په شان
چیت ا ولنداوپلن راغونډ و جود دمرغۍ په شان
تنغ دې د د له دی رنګ روغن دې دښامار دی
ښکلې دې آواز لکه دږرنده دغرار دی

## مېږی

اوږد کاروان ستا ګرم روان وی
سم په قطار قطار لکه اوښان وی
په هله هله په منډه منډه
نمر د ر له وسوه اندېه بسربنده
لکه د سپی هسې پهخوله کښې ورل کړې
او دیلتنې په شان په پریښ تلل کړې
د مرغۍ په شان هم غل هم نرئې
په حکم کلک روان د خپل افسر ئې
د خپل نظام تابع لکه انګرېز ئې
په زړه مضبوط مړنی لکه چنګیز ئې
ملا لچکه اره نرۍ لکه ابنتوړ لرې
خوله دګلداګ هسې ښې پت پتوړ لرې
وجود دې دري بنده او شپږ دې پښې دی
نرۍ نرو چکې دی کږې وږې دی
او لاس دې یو نشته دا عجیبه ده
شه بې تولې غوندې دی معامله ده
د پیدا کړلو آفت د جمع کړلو بلا
لکه د شوم خښوي ځکه کښې وارهدنیا
پههیڅ ایله نه کوی لړم خوري مار خوري
تهدمچو دڼبرو تر سکون اچارخوري
د صبا فکر کوې لو ی فلسفی ئې
مستی خندا نه کړې پخې وصوفی ئې

یو قدم نه اخلې — تــه بې غـر ضـه
رب دې مونبزوساتی — د دې مـر ضـه

بس دخورا ک له غمه — لیونی گرځې مدام
ته ئې د حر ص بنده — ته ئې د خیټې غلام

ستا طبیعت د قار ون — د خزا نو شو قی
مین په هر ه میو ه — د هندوا نو شو قی

د اسې په دوړه ز غلې — لـکـه بـګـوړه
اچوې د چر ګې هسې — سپینې هـګـۍ

د یراست کا ر ئې ته — خو لا مبو کنښ نه وی
په مرزمړی و ر ځې — ژ و ندی ملخ نه و ی

د ګل جهان صفا ئې — ستا په ټوپکه د ه
ستانو کری په ما چین — په ا مر یـکـه د ه

او ړی اوژ مـــی — هـــر پشـــکـا ل
ستا د غـه لار و ی — ا و د غـه خیـا ل

د پیدا یش نه و ا خله — تـر د مـر ګـی
تل د غېټ بنده لا نه دې — کو ې ز و ېر ګـی

نه د ې ېو ر ه کړ ه — ا و نه ته مو ړ شو ې
و ږ ی پـیدا و ې — او وږی ز و ړ شو ې

تا کـښې خبر ې ډ یر ې — د ی ز ما خو ښې
خو هیڅ مستی نه کـو ې — پـه ز ړ ګـی یخـې

بس منډ ه منډ ه ئـې — تول او ګډ ا نه کـو ې
بـې د خو ړ لـو څښلو — بـله سو د ا نه کـو ې

خو ز ما خو ښ ئې په دې — نر بها د ر ئې ته
په دې و ړ و کی وجو د — بو شیر ببر ئې تـه

په ما چک مـه لګو ه — کـه ز ما یا ر ې
ا لله د ې د ر کړ ې — د ا نې بسیا ر ې

# هاشی

د ما ښبا مه تر صبا سر ینده ګـله سر نا
پینیه پینیه پنګه پنګه هم خو ړ ل کړي هم و ینا

سپک به و خېژي په تو ل د وږ د ا نو سره د غو ښتو
خو ها تی ستا د ګو زا ر ه ځان کړی پټ په خټو بو ختو

پیچکار ی دي وی تا ړ که کړ ي هر چا له ا نجکشن
ته به و ي ستا با با جی ؤ د نو ښا ر سو ل سر جن

ده پېړی هومره کوپړې کښي دي همخوله شته هم خړ تم
ا و ز دي پښي د ي د جو لا دی نر چو کی و ز ر د ړ م

ا و ز ده ړ و نګه د ړ نبرۍ بد دي نشته په لا شه کښي
و ا ړه ز هر د ر ا غو نه د ی دو کیل په شان په خوله کښي

نو ر همه غله د جها ن و ی د ما ل د فصل غله
ته ز ما د ژ و ند و ن غلئ ي ز ما و ینه ستا خو ا ړ ه

په زړه سخت ئي د یز یده د ګلاب به شا ن و ړ و کي
سرتر پښو سوری سوری کړي هرسوری کښي آفت پو کي

چه ز ه را شمه ستو ما نه په کټ پر یوځم بې اختیا ره
ته به و ي تا ته غو ر ی چا د پو لا ؤ کیښو ه تیا ر ه

تک مي او باسې د غو زه پوست بالښت نه رسیدو کښي
بیا د تمري (۱) خپله شروع کړي په نر و نر و پر د و کښي

ستا په طمع ګو زا ر و کړ م ځا ن له ښځ او سو ځو مه
ته مي شا ته سر یند ه و ي ز ه غو زو نه ګر و مه

که ر ینبمین شاني ما ښام وی سور ګلزار اوشین چمن وی
چه یا ر ا ن و یده په و یښه نشه شو ی په د یدن و ی

په سرو پښو دلیلی ګیبز د ي پلیت و ز ي د سبی د ا ړه
لیلی وخ اوویش شروع کړی خو ار مجنون پر پږ دی و لاړه

که څوك پټ شی په څادر کښي ته پر ي پاس کړي بنګه بنګه
چه آخر ئي پو ز ه راو ځی لکه شکوړ ن دخپل سر نکه

(۱) هندی غزل

ته پرې شغ شی داسې پرېوځې — لکه باز کښېنی په زرکې
هله ئې پرېږدې په قلاره — چه جدا ترې نه اسټرکې (۱)

بند یان لوی وړوکی څه کړې — هر څه ستا نه په آزار دی
غوا ن سنډ ګان مېښې اسونه — د لکو وا او هزار دی

وړوکی څاڅکی د دوزخ ئې — که دشر آفت بخرې
خوله ز ماپه وینو سره کړې — بیا پرې وې را ته سندرې

وئی ملا با با چه ستا یو — قرنیکه په پا پو شل
د نمرو د سپېږمه کسې لاړ — غلی غلی په چل و ل

هغه اورغږ ید په مځکه — کلک ئې ونیول خپل تشی
چه شروع ئې په یوځك کړل — هم تیزونه هم اڼو شی (۲)

خو ګوډی د ننه ناست و — ړ قول به ئې و ز ر
هله ئې پرېښود چه ئې وښده — د غریب نه کچو مر (۲)

حرامتوب کښې دې شکشه شو؟ — چه د دغې با با ځوی ئې
چلو لی لکه لو مبړ ئې — وزې سترګې لکه سپی ئې

لا یوه بله نخره دې — د همه ود ه عجبه
ځان سره ګر ځوی په بډه — ښه تو ده د منی تبه

دادعا د لیونی ده پا که ربه که قبلوله!
کړه را ښکې په واړو ماشو، تیږه سره د هر سیائی

## اس

## (بدو)

ترپ ئې د هوسی په شان — زړه ئې د زمری ؤ
رنګ ئې د غمی په شان — خیال د ښاپیری ؤ
سترګې د کور کوړی — غوندې غوندې ښکلې
تله ئې د نرانو — طبیعت ئې د بلبلې

تن ئې د طاقت او د مستۍ او د نرانې ډک
روح ئې د همته او ځیګر ئې د مړانې ډک

---

(۱) کړې (۲) پرنجی، عطسه، (۲) هندی او اردو اصطلاح ده، دزیاتوهلو او مغلو، ولو په وخت که ای—تعمالیږي ،

پښو کښې ئې ګډا وه د ساقی د سپينو پښو په شان
ستر ګو کښې غمو نه اميد و نه د هوسو په شان

زړه ئې د پښتون ؤ نه په ګنده نه په غر ايسار
جوش ئې دغازی ؤنه په ځان اونه په سر ايسار

چو به خوله آشنا زما ! لاړې چرته لاړې ته ؟
چرته دچاکور کښې ئې ، چا نه وګړی غوا ړې ته ؟

شته هغه د نيا کښې وا ښه شنه د هشنغر په شان ؟
شنه هغه د نيا کښې ښه نوکر دد لاور په شان ؟

چو به خوله آشنا زما ! چو به خوله وي قول عمر
اوه اچه زه ز لمی وی ال اوه چه ته وی قول عمر

د غه وآ شنا زما د غه وه دژوند قصه
د غه د آدم وجود د غه د سمند قصه

ترپ شو او تو پو نه شو
خوب شو او خو بو نه شو
د وه د مستی ور ځې شوې
د وه د غ کلو نه شو
نه ئې د را تلو سبب
نه ئې شته د تلو علاج
نه ئې د ژ ړيد و دوا
نه ئې د و لو او علاج

نه ئې د کمو او بند | نه ئې د ز يا تو لو شان
نه ئې د هير و لو تاب | نه ئې د ليد لو شان
نه ئې د سلګو تپوس | نه ئې د خند ا و جه
نه ئې د پر و ن سبب | نه ئې د صبا و جه
اې مسه آ شنا ز ما ! | لاړې ته او لاړې ته ؟
چرته د چا کو ر کښې ئې ؟ | چا نه و ګړی غوا ړې ته ؟
شو کې به نوا لې د ر کوی | شو کې به کوی ستا مدار ؟
کوم جها ن کښې الوځې | ستا د مستو پښو غبار ؟

بدو :- زما عربی اس وو چه زما په غير حاضری کښې مړ شو - دلاور ئې ساتيس وه

# کارغه

تور دې مخ دی غلچکیه! تور دې زړه تور دې آواز دی
سپي ئې خیټه ډکول بس ستا انجام او ستا آغاز دی

چا تور یې که د مستو وی، که د یکچې د کچالانو
که پولاؤ د خانان لالا وی وظیفه د ملایانو

ستا په هر څه کښې حصه ده، تول جائداد دی ستا د پلار
یا ته نکی وی یا تغیبزی نه آرام کړې نه قرار

غل هم غل ئې بې غیرته، د پوتی چرګوتی غله
نه دې پړک شته نه دې لته ډک د شور ده د چلوله

موتې خیټه کښې دې پروت، ډنه د حرص د تهترین دی
نه ډکیږی نه یخیږی، عجیبه در کښې مشین دی

که د سوتو سخا ډېران وی، که هګۍ وی د کرکوړی
که بچی د تورانې وی، که وی سخا مردار کبوړی

که غریب وی که ماشوم وی، که حلال وی که حرام
ورته ستا ګیډه کښې درد وی، که سحر وی که ماښام

بل مارغه کښې دومره پوهه، دومره چل او هنر نشته
خو افسوس قارغه! په تا کښې د عقاب سره وزر نشته

تش په چل سردار نشی، د سرو، نه د مارغانو
دا په مینه مسیږ کیږی، په موړ زړه د لیونیانو

ستا تغار د سپی کو نکار دی، یوه چغه ده د لوږی
د بلبل په شان نې نه ئې، د شبنم د څاڅکی تږی

په هنر که سامری شی، په حکمت باندې لقمان
تل به خوری چینړی او سوتې، ای چوړیه د آسمان!

سره ګلو نه د «لولیږ» دی، شنې کمرې دی د «کرکری»
یخ سحر «د تورانې» دی، ماز یګر د «تپکری»

ستا حصه ده دغه سوتی، دغه شور او دغه منډې
دا کنځل د خدمتګارو، دغه چغې دغه غونډې

څه که تیز لکه وکیل ئې، خپله وائې د بل ناورې
په مارغانو کښې چوړی ئې، کړه وزرې دې ربخلورې

هېره

اوسې په کندو کښې يارهغلګې پلاردې غلۍ و
مور دې غلچکې روه‌ستا نيکه د بدو ملۍ

قامدې حرام‌خوردی قبيله دې حرام‌خوره ده
مړ شوې په غوړو پسې لکه تور دې سپوره ده

ستر ګې دې کاسيرې دی چلباز ې دی بې شرمې دی
کلک دې دی غاښونه او پاپوړ دې نرمی نرمې دی

خيټه دې کوپوړه د کدو يا د شناز هسې
سر دې د نوليا و بر يتوکی دتره باز هسې

غلا کړې له غر يبه غلاخانه، له بڼيا نه کړې
سيداو ملا نه پيژنې بوته د هر چا نه کړې

ستا داوړه خيټه، دې همه جهان مړه نه کړه
ستا کا سيره تنده ن عمر و نو غلا سړ ه نه کړه

ذات دې لخناوردی خوخوراک کړې د انسان هسې
اوسې په سخسوړی کښې فيرنی شتې د خان هسې

زړه دې د يزيد دی طبيعت د ی د شيطان هسې
چين(۱) دی د منت د ی حو همت د پهلوان هسې

(خو) ورشې چه پيشوله نو بولاو بيتی دې هيره شي
پيش په خيټه موړ شي په ناګيا ره باره تيره شي

غل تر هغې غل وی چه تری بره غل پيدا نه وی
چل تر هغې چل وی چه تری بره چل پيدانه وی

دوه دانې ترې وخورې دوه دړی خاورې ايرې کړې
وزې خوله دې خاورې شه انبارذرې ذرې کړې

خوی دې د خنز يردی اوفطرت دې د بنا مارد ی،
خوله کښې د آفت دی او په شونډو کښې آزاردی

(خو-) غوټه چه شی سخته آخر به‌نبه‌برې چاړه شي
ته شې په جوار و، پيشو ګان به تا ماړه شي

(۱) يعنی او ازاو چونګار دې د زاری دی

## کوچۍ (۱)

زما کوچیه زما کوچیه ! ته خو سپی نه یی زما آشنا یی
په تنه نر وی تر زمری نه قصه د مینې نوم د وفا وی

چه زه اوچتوم د کل جهانه (په) لکها سرومې دا سر وره
ستا ستر کې ځرځې د مینې ډکې تیرې وی دژو نده د ځان او سره

چه زه آسمان نه خاورو له راغلم تاج مې را کوز کړ او کچکول مې واخست
شال او دستار او خلعت مې ور کړ کند مې په سر کړ او جهول مې وا خست

تا ته زه هغه شان د ملک بادشاه وم هم هغه ستر کې هم هغه مینه
چه ټول جهان غیال د اړ ل کړ ل باخو ځو له لکیه مې ؛

ته خو آشنا وې زما د ستر کو
نه مې د « زور وی او نه د » زرو »
د هغه تون که در وند که سپک شو
ستا بس نو نو ل ؤ او یو نطر ؤ

ته زما یار وې دنه وور ځو دنه و رځو یار نه هیر ایږی
چه ټول جهان بوتور صحرا شی دسرو ګلو نو خار نه هیر ایږ ی

هاتی چه دژوند په رنا بلې
ستر ګې روښانه ستا د وفا وې
زما کوچیه زما کوچیه !
ته خو سپی نه وی زما آشنا وی

«تهندیانی »

## تورانی

داسې ټکی په پښتو ژبه کښې شته تورانی ! چه پرې زه و وایم ثنا ستا
دې د خاور و جوړو شو نو کښې ځنګ ځای کړم خوشحالی ، مستی ـ ځو انی او خنداستا ؟
دغمو پړق ځنګ په لوټو کښې ښکاره کړم ځنګه ګیره کړم سپوږمۍ دژ بې دام کښې ؟
ځنګه و نیسم په کوټو کښې سر و ر ستا ځنګه وا چوم د نور دریاب په جام کښې ؟

(۱) کوچی ،، زما یو ډیر زوړ سپی و ـ ما قسم قسم سپی ـ ساتلی دی ا ګر یوی هم دی ـ لغړ او بیر ـ ولی د کوچی په شان بهادر ښیسته او هوښیار سپی نه پیدا شوی دی او نه به پیدا شی زما د بند په دوران کښې مړ شو

څنګه خوب د ځوانۍ کړم بندی د خاورې — په شه وتلم رنګونه د وصال
څنګه نور د یار دستر ګو لاس کښېږوا حلم — څر نګ وتړم پنډو کې کښې هلال
دیده غلام د ریاب کښې د سلطان — دا سېزه ولاړ ستا حسن ته حیران
داده بس چه مجبوری مې خپله وښوه — توراني ! نه شم کولی ستا بیان

خو چه ستا پیغام د نوی صبا اوورم
لکه ګل چه د پسرلی واوری پیغام

تیاره هیره کړم په طمع د رڼا شم
په احد کښې و څکم د مستی جام

امید و ینې شی ژوندته بلښیسته مثال کړی
د مرګ د مخه ناردژوندو ن شال کړی

## ملاچړ جنګ

زیړدې کمیس دی — خړدې خشتک دی
شمله دې نیغه ده — او کوټ دې ترګ دی

تول ورځ کېږې کښې — په ځان مینه !
چه خوار چینجی یې — کنده کوینه

نما یشی شان ئې — کړی د نخروا لوا ته
د مشرو تو نه ډک — ستا قد مو نه کاته

پخې پڅې دې ستر کې — دی د «پښتو» (۱) په شان
په درینجه دِ رینجه تله — دی د تتو په شان

د سلیمان د لال ئې ؟ — نوم او صافه دا مام
یو خوا قبا او تسپې ؟ — بل خوا پیاله او جام ؟

یو خوا سپین روبی ملک — مرید درسم او قانون ؟
بل خوا د مېنې دلال — بندی د رسم او افسون !

یو خوا تنګی تاریکی — د بل د خیال سودا
د بال او بچ سودا — د ځان اومال سودا

(۱) پښتو، زما معزز او محترم دوست مهردلخان د هوتي خان خیل قد ئې وړو کې دی- خو دماغ ئې د زړ او چت دی- او مونږ ور ته د قهر او محبة «پښتو» وایو .

بل خوا د بل په مينه ځان او ناموس ور کول
پېښا با شي له دزړه د ښار جلوس ور کول

يو خوا د ال ستر ګو کښې د د رنيد و تا لا ش
بل خوا د لاسو ځا نګو د ا لو تو تا لا ش

زړ ګ او معقول پښتنيه ! ښکه په سر ملا !
تا کښې ښکاريږي ! مانه دڅ و ز د عجب قصه

چې ... ه والو ځي د ملکه صباء و و ينم
او سليما ن نه حاوري تو له د نيا و و ينم

د بحر و بر با د شا ه وړي ې شا ن جو بې ته
قر بانوي خو شحا لی د غم مير منې ته

د ګل حندا و و ينم د او لکه پر و ا ز
د محمود وزيې ستر ګي معصو مه خو له دا ياز

زه د آد م د جو ړ ښت په و جه زا ر پو ه شم
په حيل ا نجام پوه شم په حيل آ غاز پو ه شم

## چړ ګ

خورا ک کوې دسپې او مسئلې د ملا يا نو
با نګو نه د بلا ل اولنګو تې د چنګړ يانو

پرتو ک دې ياره ! نشته او شمله نيغه د خا ن ؟
شل ښځې دې سا تلې خو سحر وائې اذ ا ن

په جنګ کښې بها در اومستانه لکه چنګيز
په مينه کښې بې شر مه بې پر وا لکه ا نګر يز

اور بوزدې دقا ضي دی طبيعت د ې د هټلر
آواز دې د ... هو دی او ا ند ا ز د منسهر

ا نجا م د ې تبخـــی د ی
ای مجنـــو نه د پـ يــر ان
يو ورځ به روستې بانګـــو کړې
دو ډې به و کـــړ ی خــا ن

# بورا

تور ه بورا تور ه! ته ومند ئې که خټکې؟ (۱)
زړه کښې دکونګې د ارمانو نه دلولکی؟

موردې گل اندامه ده باباد ې تورا (۲) بان
رنګ دي د شا حیل او طبیعت د شا هجهان

ښنګ دې دې مړردی فلسفه دي د خيام ده
تورګونګه‌تاکوم ځای شکلې خو اد جام ده؟

تا د رنګ او حسن ساز د چا په ستار واوره ده؟
تا د چاد خولې‌د استان د مینې او یاروا وره ده

ی تور ه د یچکیه! تا کښې‌می دشیرازولې؟
ای حپه ماښامه‌ما کښې نور او ګدازولې؟

حو یاره تا کښې مې! یو صفت بدې شی
ستا کوڅه ډب شانې! مې عادت بدې شی

اې هر جائی عاشقه! د یو ګل یار نه ئې
د مینې نوم دې سپک کړ د یو دلدار نه ئې

هر لمحه لحظه کښې نوی خمار لټوې
او په مذهب د مینې ته بې‌وفائې پرون‌دبل‌وی اونن زمائې

په رنګ او بوی مینه! جانان دې هیر دی
ځوانی مستی ښکلوی خزان دې هیر دی

د فراق تور غمونه ژړا افسوس او ماتم
هیر دې دی وچ سینه ونه زړه ځونی، نوی غم

د زیړو ګلو شان کښې مرګ اوکیده دې دی هیر
د نن په شوق مسته! صبا راتلله دې دی هیر

داسې بېتو له ته ئې شنګ بې پایان چه زه یم
ته د هنه ئې بورا د چا انسان چه زه یم

تا کښې رنګ او تیاره سپین شنه او تور رشته
چه ته ښکاره شې وایم زما هم ورور رشته

(۱) خټک ئې -(۲) تراجان هغه دېوډوچه په ګل اندامه ښاپیرۍ مین وو -

# تارو

وګوره یو روځې تور تارو په سجده پریوت
وئې کړه له رب ته عجیبه غوندې دعا
وې تورولې تنځری دی او خړه ولې زانه ؟
ولې یو، باتور، یوه ګنجوره، او یوه هما ؟

زه به تل حسین یم او ښکاری به تاب یزید وی ؟
لاس کښې کله دام، کله توپک، کله لینده ؟
پر د بورا یو سی تور بورا د ګلو مینځ له
پر وړی ګنجه غریبه بوی له او ډیران له

پر وړی لو لکه، لکه باد د ګلو با نې
پر وړی پتنګ رنا له، سوزله، او تاوان له
پر وړی میږی د توار نوه ښا و رمبو کې له
پر وړی کور کوره د شهباز او شیکری نوکې له

پر قارغه په ګند، پتنګ وژر واچوی په اور
پر عقاب له فخر او تپوس له شي پیغور
پر یو په باغچه کښې د صحرا دردلیوا له کړی
بل له جام د ژوند شی، جام د زهرو د منګور

پر د عقاب لړی شور به ولې د تنځرو !
ولې هرمار غه کښې نشته تله د تو تکرو
ولی هنه ملک دې د شهباز د شکری کور کړ؟!
کوم ځای چه درانه ګرځي سیلونه د کوترو

یو تنځری بس ؤ ستا کمال ښکار ه کولو له
ښکلی له طاؤسه خوش ز بان له کوترو
بس چه یو مارغه وی، یوې پروی او یو ته وی
بس چه تل باجره وی، ځناورې دوړی وی واښه وی

بس چه تل پسرلی وی، زیړ ګلو نه وی، صباوی
بس چه بس یو ته وې، بوا رمان وی، او یوزه وې

تول جهان خاموش شو دخپل زړه آوازئې واوریده
زیړ سکه غلام ، د بادشاها نورا زئې واوریده
تول جهان خاموش ؤ بوادمو چه گو یا نه شو
مینې د اسې یوړ ډ بې خبره د خپل ځا نه شـو
(وی) : زرلکهاسوالونه ژوند ځواب یمه زه د تو لو
زه یوه قصه نه یم ، خو باب یمه د دوو
زه کله مراد ، کله ارمان ، کله غرور یمه
زه تنک او تکور یم ، زه شراب یمه د تولو
زه یمه مخلوق خود خالق درنگه ډک یمه
زه گا مل کمال زه سرر باب یمه دتولو
زه یم تورې پنجې د باز ستر گې د تنخرو
مه دې پټ ارمان د حسن زړ ر دی د وزرو

پهار پور

## گورگوړه

شو مره ښکلې تصویر دې ستا ! شو مره دې ښکلې آواز دی
ستا په نظر کښې سپوږ مۍ پته ستا په پا بو کښې ایاز دی

مخ دې نازك د ماشوم په شان
خوی د ښیسته نازنین هسې
خیال مستانه د خیام په شان
تله د مخمور ماه جبین هسې

مینه کړې لو بې کړې سترگې وهې نازاو نخرې د دلدار کوې
ته د گلاب او نرگس په شان ما ته قصې د گلزار کوې

ښکلی ثبوت د خالق د ښیست
ما له قیصه دجنت ئې ته
ما ته داستان د کرم کوی
ما له دلیل د رحمت ئې ته

ستا د ګوګو ، ښیسته آواز ما له اذان د بلال دی
ستا د خندا رنا و چوړد ما له پیغام د وصال دی

## مچ

شغ شی چای کښې راغوته شې دادې څه خر بیثی رنځ د ی ؟
پکښې داسې چورلك وخورې ته به وی د « بنګړې » منځ د ی

وزې ژ به دې شه خاورې
نه دې خوب شته نه قرار
په تـر و سو ځـو مـینـه !
والی (۱) ئې د چـا آزار ؟

د هر چا کـره میلمه ئې نـا بلـلـی بـې عـزتـه !
نه په شرپـا ندې جارو ځی نه په سوك او نه په لته

تور دې مخ بې شرمه ستر ګې
تیار خورئې مورداره خورئې
بد دې خوی سخا دې ډیـره
په هر شی د پاسه سورئې

که ښورو اوی ته پرې مړه ئې که غوړی وی ستا پکار وی
ستا پرې بې صبره غوټې وی کـه خرشنه وی کـه انار وی

بې غیر ته خو ئې دو مـره
د مـړ و ر و ر و یـنـه څـټې
ای شهیـده د کـبـا بو !
ای غازی د پراټې !

که پنځوس خپلوان دې مړه شی ته د خپله خو یه ناوړې
و ائې « سر د خیټې ځار شه » شرپـشی زیره خیټه واوړی

بدې بدې دې پا ښه د ی
د لینـګـو بورې امـلـې
خوله دې زیړه په لاونې د ه
چه پرون دې وژ خوړلې

سخا میوه لیقړې بد بویه ستا پولاو فیرنی حلوا د ه
ستا دې خیټه کښې دوزخ دی ستا دې شونډ و کښې بلا د ه

(۱) وهـلـی.

تو له ور لځې « چپه ! چپه ! » ستا د ا خوله وز گاره نه شی
د د نیا گند و نه خلا ص شی ستا کو لمه قلا ر ه نه شی
خیر دی ژ می را ر و ا ن د ی • تو ر ور بو ز په د ې چیچړ شی
چینگکه خوله به چر ته پروت ئې د ا کو لمه به د ې پا پړ شی

ز ه به خو ر مه په قلا ر ه
تو د شربت او خو ږ ې گو ړ ې
د ا بـو ډ ی د نیا بـه د ې مړ ه وی
تو ر ه مچو ته بم مړ ې

حید ر آ با د جیل



# شپږ زمري

په کال ۱۹۴۹ کښې زه په دریم ځل د هري پور جیل ته راورسیدم، دا زما د بندید و دوهم کال
و، په دې دوران کښې ما د پېښور او د حیدر آباد سنده جیلونو کښې ډیرې بدې ورځې تیرې کړې
وې، مونږ ټول یاران دوستان خپل خپلوان د پاکستان په ټولو صوبو کښې خوار ه بندوو،
خو د هري پور جیل ما ته د کور په شان ښکاریده، ځکه چه دې کښې زما بابا ډیر کلونه تیر کړي
وو، د هغه د لاس ډیرې ونې دلته شنې ولاړې وې، زه د حیدر آباد د جهنم نه دلته په کال پس راغلم
او په ډیره موده پس مې یو وړو کی د زیړو ګلونو نه ډک وتی ولید، هر سحر چه به زه پاڅیدم
نو د هغه سلام له به لاړم، زه په انګلستان، یورپ او امریکه کښې ډیر ګرځیدلی یم، او ډیر
لوی لوی باغونه مې لیدلی دي، ولې دومره ښایسته او رنګا په یو بوټی کښې هم نه وه، څومره
چه دغې غریب او ارزان ګل د خوادا و سپینې توري پنجرې او چاپیر تور ماحول ور کړې وه،
دې پنجره کښې ما سره نور شپږ ملګري وو، (۱) پیر شاکر الله د ګوجرو ګړهی (۲) خان خیال
مهردل خان د هوتی د نواب ورار ه (۳) جهان زیب خان درزړو، زما د ترور ځوی (۴) فردوس د مایری چه
مونږ ورته د مینې نه کوکو وایو، (۵) زرین خان د ماسې د بار لمنت ممبر (۶) یوسف خان بابو خیل،
یو ما شپږم مې د ماغ و تبښند، داد ټولو شعر مې اولیکه او د ډوډۍ نه پس مې واورا وه،

دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دي زمري
څوک غټ دي څوک اوږده دي، څوک ښار به دي څوک نري

**وروره پاکستان عجب جوړ کړی چړیا ګر دی**
**بند پکښې دیوان، پیریان، ازوږې، ښاپیري**

ور ته محا مخ و ړه پنجره ده د کوکو

(۱)
مخ ئې وچ یو بندې دی په مثال د ما کو
رنګ ئې د فیر نګ دی حو ئې زړه دی د پښتون
تن ئې د بلبلې خو همت د هلا کو
وائي او کنه، او کنه، هن کنه هن هن کنه
یاره که رب زه کړم د دې ټولو لوا کو
زه به د ا ښار به شتو ه کړم یو ځل نري
دلته کښې پنجره ده پکښې شپږ دي زمري

اخوا ترې زرین دی د وطن نوم ئې میاسه

(۲)
هر ما ښام و باسې د خبر و نو حلا ده

غاښ دغریب نښته ګنې خوښ ئې دی چرګان
هره ورځ ګډ و خوري ور کړی خوارله دلاسه
نن ئې دچنځنې دی خو عمل دلقمان
خیال ګڼې انتشاروی او زړګی ګڼې تلوسه
حرص د دنیاته لګوی د سنګ کوری
دلته ګنې پنجره ده پکنې شپیز دی ز مری

(۳) پل سر ګنې یوسف (۱) دی هاضمه دغریب ور انه ده
هر وخت ئې قصه دا پرقو، پو کور وانه ده
دال ئې هوابند کړی الو ګان ئې اینه سیځی
غوړئې زړه له بد دی مصاله ئې په ګر دوګر انه ده

مالګه ئې ستر ګې زیږې کړې ښورواګې شونډې وچې کړې
دی جیل ته حیران دی جیلخانه ده نه حیرانه ده
چای چه ډیره وځښې لګی اتڅکی پرې سری
دلته ګنې پنجره ده پکښې شپیز دی ز مری

(٤) خوا ګنې ئې دی بیر شا کر الله رمونږه حان
هرچا ته رسوی تبیر او ګوړه الو ګان
دی خواته سپی ګل احوا غوړی، اخو اصاو ن
تله په لاس ناست دی د چلو نو کړی بیان
ځان دلو زې مړ کړی خو آشنا له ډاهر ولپېږی
کاش چه وی دده په شان تول رمونږ پیران
ماله ګوړه را کړی یار له ولیږی نری
دلته ګنې پنجره ده پکښې شپیز دی ز مری

(٥) دیخواترې مهردل دی، دې زمو نږوړو کی ور ور
چرته چه دی ناست وی هلته وی خندا او شور
یوموتی و جود ګنې ئې یو غرد نر توب پروت دی
سل مرګه به وا خلی وا به نخلی یو پیغور

(۱) یوسف خان آخر معامی اوغوښته او ګلی ته لاړ اناالله وانا الیه الراجعون ط

تل په بل-سورلې کړې په فطرت پیدا یښت خان دی
تورې ئې جوړ کړې دی غرور کښې ځان له کور

حیال ئې د موسی او ځانه ندان د سامری
دلته کښې پنجره د ه پکښې شپېږ د ی زمری

خوا دښې ئې لالې (۱) دی زمو نږ کشر ز ما رور
(٦) قید ئې کړ په د ې چه دی دی ځوی ز ما د ترور

دی په زړه باتور ؤ ځکه کور له دغم را غې
شته ځلمی ځلمی ځما د خپلو نچی نور

داوړو کی زړه شنکه د وطن مینې تا لا کړ
دا خوډې له جوړؤ چه کړی خاورې دعشق اور

داوړو کی زړه شنکه د و که نه کړ سامری
دلته کښې پنجره د ه پکښې شپېږ د ی زمری

## اوه گلونه

چه دا شعر مې وا و راوه نو تول ملگری مې چوپ شول یو سف خان حو راسره خبرې بندې کړې، ز ر ین کا کا مهر د ل خا ن ته خپل زړه-سپک کړ، مهردل خان هم خفه شوې یر بهر د ئې راته و ویل ، زه ډېر خفه خپلې چکړه ته روان شوم، ناگهانه مې هغه وړو کی دزېړ و گلو بوټی ولیده ور سره خوا کښې کینا ستم هغه وې وا ې خان نن خو ډېر خفه ئې ؟ ماوې تول دوستان مې خفه کړی دی ځکه خفه یم ماخو تو قه کوله خو هغوی ترې بو قه جوړه کړه، وې خان ادا خپله خوله دې هم قلاده هم بلا، د ننگلې نه د ننگلې ، بل شعر و لیکه نو په دغه ماښام ما د خپل ژوندا و له قصیده و لیکله اود تجر بې په طور مې خپلو ملگر وته واور وله ، او هو ! هغه ما ښام زه په تو له دنیا به دوست او لو ی شاعر شوم او کوم شعر چه زما د اتول مرور دوستان ز مامینه نا ک یاران کړ ل هغه لیکم ..

یوه وړه غو ند ې پنجره کښې
په یو کو ټ کښې د د ې جیل
داوو گلو جو ړ کړې ی
آ ز اد ی لـه چا ا میـل

(۱) : اول گل ئې ز ر ین خا ن دی
چه په ما ت اوگو ډ و جو د
دا الله سو ر ې و ئې
په تنو ر کښې د نـمـر و د

(۱) جهان زیب ته مونږ لالې وایو .

پوی په سوداوپوی په زیان | په دماغ لکه لتمان
دیو خیال او خوب د یار ه | په خندا خو شوی زیان
که پروند پر یوځی سور انګار ته | همت نه دی حماقت دی
چه هم سوځی هم روان وی | دامردی دا شجاعت دی

درستم نه بهادردی دمیا سې ورو کی نانا
دترخوچایوپیاله کښې ئې کړه ډوبه جیلخانه

(۲): وریو ر ې دی فردوس(۱) خان | په مخ سپین په زړه نازک
دپښتو په نوم او ننګ کښې | دفولاد دګټی کلک

لاوړو کی شان هلک ورچه پرې وشوامتحان
دلیلی په عبادت کښې درقیب شو بند یوان

د دنیا په وار و نر مو | په پښتو په خوږ و یوینړی
چه پښتو ن په تیاړ ر و سر شی | د ې ئې لار کښې و غورځیږي

خپله ګټه خانی پرېږدی ګند را واخلی د ملنګ
خان په ننګ خاورې ایرې کړی چه پښتون ته واچوی ننګ

ر ب دې یو ځی ما یېر ی ته | چه کړی یاد اې ې سیل
داو و ګلو جوړ کړ ی | آزادی کې چا امیل

(۳) وریسی زما چکیږ ده چه لېر سم یمه پرووران
په میراث مې رر ګی ده خوبه فکر کښې شیطان

م پید اله ا شنغر ه | خو په فکر اتمان حیل
یو کیږه وورانه، ویجاړه | غورنې ځانه دد ې یل

قسمت جوړ بدر نګه ځوی کړ د هوډ شکلی پلار له
نصیب شپول دا زعو ور کړ د پښتو ګلو ګلزار له

خو د بخت تیښته نښته | زه پرې تنګ یم دهرچانه
ماته دې غم او تکلیف کښې | دی دژوند تیرول ګرانه

و لې شه و کړ م ور کیږ م، که مد احمه د سیل
داو و ګلو جوړ کړ ی آزادی له چا امیل

(۱) فردوس خان د۱۳ کالو په عمر اول حیلخانې ته راغلی وو .

(٤): زما پسې وړوکی لالی دی — پاکستان ترې په ویر پېژنی
چه تاریخ اسکر یزی وائی — نوجناح صاحب قار یږی

د کالج نه ئې راوښکه، دژوندون توری کوشې ته
اودمرګ د کوردئې راوست دژوندو نومدرسې ته

دلته هغه تعلیم مومی — چه په ټل جهان کښې نشته
جیل چه ښئی هغه ښودنه — دتعلیم امکان کښې نشته

**درداوغم هغه استاد دی چه لقمان اوافلاطون**
**ارسطو ،سقراط ،بقراط ئې ټول په مخ کښې وی زبون**

دی بندی دا نصاف نه دی — دی بندی دچا د ځېل
دی اووګلو جوړ کړی — آزادی له چا امېل

(٥) وړپوري چکښې کښې پروت زما یار دهوتی خان
په وجود یو موټی غوښه په ځیګرلوی پهلوان

که عیشونه که حسداوی — که وی حوری که غلمان
هیڅ ئې ټینګ نکړ چه جوړشی — د مستۍ تورې میدان

کاش! چه وی حالانو راوړی، یوشودارنګی خانان
حو افسوس د اسې ال سنه، په هوتی او په مردان

چه بلشوک محفل کښې خاندی — یو مشال، یوه رڼا کړی
چه مهر دل کړی کو نه پوري — ټول محفل شی چراغان

وړوکی ګلاو پرسرور دی په دې ګل کښې درامبیل
داو وګلو جوړ کړی آزادی له چا امیل

(٦) وړپسې شاکرالله دی — د همه ؤ نه هوښیار ه
په خنداخندا پوره کړی — دهر چا د کور بیګار

د اسې پیر دی چالید لی، چه ځان و سنی مرید ته
په خندا د حسین سنر کې، سرسا په یوسی یزید ته

که د عقل په حساب ئې — وی د زر و خزانې
دی با و یا سکندر — یا دارا د زمانې

حو افسوس چه لاس ئې نشته د ړکی په پیمانه
ځکه تش ژوندون ته وائی د ګلو نوافسانه

په‌شېږ شو کو زاره کړي — یا ر د عطر و د بلبل
دا و و ګلو جوړ کړ ی — آ ز ا د ی له چا ا میل
(۷): آ خر د ی یو سف خا ن — د غني نه مړ و ر
هم ئې مال په‌شمله‌داؤ شو — هم نا لا ئې شو ځیګر
پلا ر ئې غر ؤ د سدم ننګیا لی ا و تو ر ه با ز
پو ه په ننګ ا و په پښتو و د جنو ن په‌ښیسته‌ر ا ز
لکه باغ‌به‌ګل‌ښیسته وی — د ا سې ؤ به د ۀ سدم
ژوندی‌ګاؤدپښتون‌زړه‌ئې — د ژوندو سترګو په نم
ئې ښیسته په نا مه سکاري تو ل خا نا ن د با بو خیل
د ا و و ګلو جو ړ کړ ی آ زا دی له چا ا میل
دري شلور م‌ونو کرا ن‌دي — پښنانه‌دي‌شو کهند کیان
یو چاچا، یو میرفه م د ی — اسر افي اوا کر م خا ن
ا کر م خا ن د نعر و د ی ، کړ ی که و سه د یو لا ؤ
و ی مدا م ئې با بدې کړي، نو د ا و ر یخ شا ېې تا لا ؤ
چاچا نبه یو ر ه یره‌دی — ممز کر سېر لګوی چسته
خو روژوغر ب‌خراب کړ — بو کړ ی ئې‌شو له ستنه
ا سر ا فی ا و میر فهم پښنا نه د ی به ست
خوار ان کړي‌زمو ښز خدمت‌سره په‌چونه‌نبه‌په‌درب
د اما لما ن د ی‌او بدا چوی ، په شنو بو نو د ا میل
د ا و ږ ګلو جو ړ کړ ی ، آ ز ا د ی له چا ا میل .

هری پو ر ۱۹۴۹

## پلوشه

که ستر ګې ښکاې نشته ښکلي یا د خو ئې شته
که تخت دبا د شا ه لر ی دی جلا د خو ئې‌شته

ا وږد ې شپې دفرا ق‌شو ې‌په جانا ن یادو لونیږي
که و صل نشته شکر د ی ور یا د خو ئې شته

دا غم د مینې غم د خوشحالی په شانې خوږ دی
د غم مالک هم خان دی جدا یاد خوږ شته
دا زه چه موسکې شوندې دې تیاره شپه کښې ولاړیم
د یار مړوند که نه وی خوامداد خوږ شته
زما دلالی راج هم بادشاهی د پاکستان ده !
آباد ئې که یو نوی ویر برباد خوږ شته
چه اخلې لیونی ربه په مینه کښې ئې ډوب کړی
رایوداسې مرګی دی چه څه مراد خوږ شته

هری پور جیل

## یو خط

زما خوږ دوست حکیم سید الاسرار فاضل د یو بند ته

یا حکیم جی !

ته څه خبر ئې د دې مزې نه ؟ ؟
پیالہ کښې شونډې د یار پرتې دی
دا سې خوږې دی دا سې پستې دی
ډکې د سرو خمار پرتې دی
تماشه لیدلې دی صوفی بې مینې
ستر ګې مد هوشه سینې مهینې
ته څه خبر ئې د اشه غضب دی
حورې پرې زلفې تار تار پرتې دی

ما ته معلوم دی کل مسئلې ستا
د سود اوزیان اوږدې قصې ستا
ګوره چشما نو کښې د جانان مې
د جنت حورې قطار پرتې دی

د خدای دپاره ساقی ګلرنګه !
ډکې پیالې راپه شرنګا شرنګ
اوږ ، ښبنم به ښبنم بهچه لیونی شم
تاورانه لیچې د یار پرتې دی
ګوره آسمان کښې سپوږمۍ رو شبانه
ما ته وی و اخله خو له جانانه
دوه ورځې ژوندی دی لیونی خانه
د مستۍ ورځې د شمار پرتې دی

حیدر آباد جیل

## سپګمي

چاله شراب ورکړی ، چاله سرې وینې له جامه
چاله خرابا نو د ه یاره ! چاله ګل اندامه

څوک په اديله باندې پرې د ماچين واخلي
څوک په چواړي بسې، د نيا کاندي نمامه

چا له ښه شربته، خوږ بوجيږ لکه د ګوړې
چا له يخه پخه شيخړو کيږ دا بو مړې

چا له د لو لکي په شان چسته او رنګينه
چا له د ګو نګټي په شان توره او مهينه
چا له فتقيوړ کو کاري، کوړ که زړه چرګه
چا له غو ښه مو ښه مسته ښکه سپينه ګرګه

چا له د اسې ستوغه، لکه وي وچه ښکيا نه
چا له ډو به مسته لکه نوي د وکه بيا نه
چا کړه صابره کورو د ابې د ره مينه
چا کړه سيمه کوري، په هر چا چه شوه پيښه

چا کړه چلی د چلی لور ښه مکاره
چا کړه کوتره چه هم ښځه وی هم ياره
چا له زړه خره بې خو ښه ښې نو ره پواړه
چا ته لکه سر وې د خندا ډکه ولاړه

چا له ښه ترسکو نه چا له ښه خوږه حلوا
يو له د نيمبو اچار او بل له مربا
يو له خميره ډوډۍ پر سمنه پسته نرمه
بل له د مسو رو پيتی ګرمه ګرمه
ورکړه د قسمت ده چا له ډېره چا له کمه
خدای دې هغه درکړي چه وي ستا په شوندو سمه

حيدر آباد جيل

## کاروان

ژوند او قرار اور او اوبه دي، نه به يو ځای شي نه يو ځای کيږي
تياره او نور يو د بل جوړ دي، داسې به تيره شي دا چه تيريږي
لکه دسيند دڅو ندهم لار ده، کله په غره کښې کله ميدانکښې
بنده عجب عجب پيدادي، کور يې په خاورو کښې ځای يې آسمانکښې

جا نا نه ما ته يې کړه ر اپو رته، داو ښکو ږ کې د استرګې توري
د ما ښام لړ ې تير ې کړ ه هيري، و ا وره د لبر ه اوس قيصې نو ر ې
ګور ته داسپينه سپوږمۍ‌روښانه،داموښزته حا ىد ى د ا مونږ ته والۍ
وئې‌ساعت څو انى د ه اى عا شقا نو، کوى‌هغه‌چه ځوانو‌ر کښې ښائې

جامونه ډك کړىء زړونه مستانه
ګاروان روان دى جرس غبزيږي
شونډې وله شونډې دميني يوسىء
سبا راتلونکى دى مجلس خوريزى

حيد ر آ بادجيل

## زېر ګك

چه دي و س د ىد ونه وى
شه ىه ته شه به دي دښه و ى

نو به هله د شـر ا بو
چه شراب د ر ته‌پرا تـه و ى

چه‌بو ږاشي خو لـ كړ شپه
بيـا توبه‌توبه‌د شه كړ ې ؟

هغـ‌هښه د ىد و ــد و ى
د ناکـا مه چه ته سبه کړي

ملا ناست دتکړو شکورته
وئې ر ــد ا نو ته خر اب

غريب‌څه‌و کړى‌جو مات کښې
نه معشو ق شته‌نه شر ا ب

دا چه باغ د ګلو ډك وى
مستانه غوندې مانبام وى
داچه سرې‌شونډې ساقى وى
په سور لاس نيولى جام وى

د ا چه تا ته ر نې سترګې
غلـى و و ئى سلا م

په‌ميـکيزدې‌زړه کښې‌ىل کړى
د مستۍ د و ز خ تما م

ا و و ئې ر ا شـه يـا ر ه
وختـدى لبزخبر ې ږ ير ې

بيا دې و ر و شان‌داوږ و نه
پستى ليچې کړى چا پير ې

خوله‌دې‌خو اې‌ته کړى‌در بو ر ته
شو نډې‌سر ې‌تودې‌يبهو شه

لـکه بله ږ يو ه ر ىى
دڅوا نو‌ر مستۍ د چو شـه

سینه در وړی سنا سینې له | د بخمل هسې ر ینبمینه
دارمان او میني ږ که | د ر گسو نه نیا ز بینه
ستا و جو د یو سمد ر شي | د طا قت او د سر و ر
ر ږه دې واخلی همه او ر | چه هم اور وی او هم نو ر

ته‌چه‌دغه وخت اوچت‌شی
شي جومات گنبې په ژړا
لیونی و ا ئی قسم دی
یاخوغوث ئې یا هیجړا

حیدر آباد جیل

# بې وفا

حسن حسن لټو مه | که په غر و ی که په سمه
ز ه په مینه مینه پا یم | بې د مینې مر مه مر مه
بې و فا که د جا نان یم | بې و فا نه یم د مینې
چر ته ر نگ ځان له لټومه | چه‌پرې‌ستر گې کړم‌ر نگینې
چه یو خم د میو تش شي | تش قیکر ی شی بې رو حه
بلې ږ کې میخا نې لـه | سینه‌یو سمه مجر و حه
تش کړ ې شتلی نه شم | چه‌خوند نه وی د کبا ب و
ز ه مین په پیا له نه یم | زه مین یم په شر ا بو
پتنگ نه شتې مو مو نه | چه‌د شمع ر نړا نه و ی
تور اندهر نه وې سند ر ې | چه مستې د صبا نه وی
ې وفـا که دیو یا ر یم | و فا دار د مینې یمه

حسن حسن لټو مه
که‌په غروی که‌په‌سمه

حید ر آباد جیل

# بند

نن چه شو مر ه بند کړی حرص او هوا بند
صبا غوا ړ ې د هغې نه سوا بند
دتو بو قلا گنبې مینه نه گیر یږی | ځنگ په‌بند کاندی سیلاب‌دهوا بند
تو ل غمونه یونظر د نیا ز یو ړ ل | لکه وا چوی تیا ر ې ته ر نړا بند

دې له ئې نه څښم چه نشته ليو نی شمه
جام کښې کوره پروت دی نوم د آشنا بند

په دمونو تعويذ وبو نه جوړيږي چه يو ځل زړه کړی د مينې بلا بند
د فولادو زنځير به دې چه ئې پرې کړم کړم جانان به ناز مکيز به خندا بند

په جومات کښې داسې وچې شونډې ناست وم
لکه وی په بت خانه کښې ملا بند

د دنيا آزادی واړه مې قربان کړې چه کړم زړه د محبوبا په قلا بند
د دې بنده د وتو بندونه شته چه ترڅووی د وجود او د سا بند

ليونی واوريد په داسې شود ګنا نو
په پنجره کښې دی په شان د مينا بند

حيدر آباد جيل

## ګاړې ودې

راشه راشه ساقی راشه !
لرې ارې ملا درې

په ما ندې بدې لګی ستا پخې پخې خبرې
غټه پګه دې شه خاورې عجيبه ته ځنا ورې

ته د مينې بې خبره !
ته د حسن نه منکرې

دا محفل دی د رندانو اخوا ، اخوا ، لرې لرې
د شرابو د څښو نه دی ستاترخې شونډې ببرې

ورشه د غلته خيرات دی
تا لوړ تول اينې دی لرې

د ګنجوړ په شان خورې کړه په مر داره دې وزرې
ساقی ستر کو کښې مسکوړ شوه بيائې د خيال کښېښو دې وزرې

په تول مسته مسته راغله
سرې پا پوړ ئې د کوترې

ستا اووه واړه جنته د دې يو د ناز بخرې
ستا څلو يښت زره کتابه د دې دوه خو زې خبرې

ستا و عدې ا و ږ د ې د حو ر و
د لته سرې سه ځ ې شکرې
تاله قرض ژوند ون در کړم — دا ر ا کوئ پرې ملغلرې
ما شوم نیم چه جنت پریږدم — ستاد سه ر د و زخ له یرې
جا نا نه میخا نه و ر کړ م
و ا خلم ستا کند ې کپرې
ملا تا شکلې نه د ی — نرګه سرې شونډې کافرې
ستا په غیږ کښې ناستې نه دی — د کالوڼ کې کو تر ې
دجومات په چار چوبې کښې
یا د ه وه پرد ه کښې
ډ ک ګلز ار کښې ته ولا ړ — په ډ یر ا ن لکه د حرې
و ږ ې ستر ګې و ږ ې خیټه — بد قسمته نه بصیبه
نیست ا و مینې ته شمکو ر ه
ا و به ز ړ ه په ر و ح غر یبه
ر ا شه ر ا شه لیسو بی لـه — جام ا و چت کړه مسلمان شه
د ر ند ا و په مذ هب شه — جمی به د ې جها ن شـه

حیدر آ باد چیال

## خمار

چه نـشه شمه د حیلـه ځا نه و ځم — لکه وځی چه سنځری د ډ ېږې نه
مست زړ ګی دغمه دارنګه او چت شی — لکه پورته سر کړی ګل دهدیری نه
دروندوجود، مجبوره تن مکان کښې پریږدم — اودخیال په ښاپیری به بانډې شم سپور
دا ږ وم آسمان به سیل ئې کړم روان — لټو م دژ و ند چینه در نیا کو ر
د ساقی خمار سرور مې پکار نه دی — دازه ګورم د خپل خیال نیلی له لار
دادې ده در ګینه و جود خوراك د ی — دامستی مینه او حسن او دلدار
دا چه زه د جانان ستر ګې نښکلو مه — داچه کېږ ده لهور کومه درفتار
د شفق د سر وږ کوم ځان له جامو نه — داچه ستر ګې سرې کومه په خما ر
څه په عیش دې ژوندون تیر که ملا جانه — د تالاش د سوځید و نه خبرنه شوې

عبادت سره تلې حورې غلمان
لکه شمع ویلې په شوې د حجلې اوره
مست زړګی دې واك وانخست دشعوره
ژوندئې خلاص تالاش ئې خلاص شوایونی هم
لکه ګل ئې ساعت رنك جهان ته وښود
دارمان خاورې کیدو نه حبرنه شوې
خوږه وسکه شوې شراب او خمار نه شوې
دبهار خزان زیلې ګلزار نه شوې
ستړی سر ګوړله په خپلو پابو یوړه
لکه سیند دریاب له خپلو چپویووړ
حیدر آباد جیل

## مدرسه

څه سبق را ته ښيي رسه
فکر کوم خو اته روان کړي
ته حبر نه ئې د خپل زوره
په پرلا وچه مې رده نه شوې
دامنم نه سې بر واه ئې
(خو) کاش چه دې ناز کو ېسو نه
دا تقدیر مې سخت استاد دی
د لو لیه سارك وزر سه
ژوند ون سه دی جوشنده ده
نه سم خوږ شو نه سم تریخ شو
هیڅ په پته دی پوه نه شو
ولې ولې د ګودر سه
زه په غاړه یم خو شحا له
زه د مینې تور بالې یم
غنی مړ په شکـو شـو
چوتی ور کړه (۱) تلیه ووه
ددې غم په مدرسه کښې
په کو څې دو سو سه کښې
زماماتې شوې پو نبتیه
زده کوم ئې په پیتیه
هر څه کړې زما د پاره
تاوی ښولې لار هوار ه
نه ئې ډب تریخ ئې آوار دی
ګران دغره وسر پرواز دی
پکښې سل قسمه حوبه ونه
هم صحرا او هم سیند و نه
چه دار و جوړوې کوم رنځ له؟
ماوړې د دریاب میـځ لـه
زه باتور لامبوزن نه یم
د جنګو د تورزن نه یم
ورکه سپینه پتا سه
صیبه بند کړه! مدرسه
حیدر آباد جیل

(۱) یعنی رخصت اعلان کړه اوزنك ووهه.

## صنوبر

لاس مې بند، ژبه مې بنده
داسې ناست يمه تر سحر
لکه ناست وي وزر ماتې
په ماښام کښې ناز یګر

چې په خوله او تیټې سترګې — د ګل حوا کښې ګونګې ناست دی
د خپل غم په ننداره کښې — ډوب مشغول دی صنوبر

د سرهم د رباب په غاړه — نشه لپه او چې شو مه ي
لیونی د تندې مړ شو — د مستۍ ئې تش شو سر

د ځوانۍ د غم ماښام
د پیرۍ سار د اختر
نه دی چا برابر کړی
نه به ئې څوک لري برابر

راته ښکاري چه بوډا شوي — رقص او شرنګ دې شته خیال کښې
ګله! نه کوې نظر ستا — غور ځنګ نه لري په چال کښې

د زوال استاذ ئې ناست وی — تل په څو که د کمال کښې
وخت اوړوند، هغه ښکاریان دي — چه هما هم نیسي جال کښې

په وینتو کښې دې ښکاره شو
د مرګې استا څي سپین
قسمت لیک د ابد وکړ
ستا د سترګو په جبین

نیشت کړو ک د لویو کندو — د مستۍ جهان مهین
د خزان جامې اغوستې — دی نرګس او نسترین

د صبا رڼا پیکه کړ — ډک د شهو کور رنګین
اوس دې خوږ به ژبه لګی — د شرابو نه ګسین

هغه سره ګلونه څه شو؟
چه ته کول به دې صحرا کښې
هغه او ئې محفلې څه شوي؟
پر قید ي به چه هوا کښې

هغه مست سرور دې څه شو؟ — چه په شپه به دې هره سا کښې
هغه سپین مشال چا یوړه — چه لګو به دې بیدیا کښې

دا تور ، تور ، سورې د چا دی ؟ چه روان دې دی په خوا کښې
بوخپه‌دې ورو زوزده کړل تيتيدل دې دی په شا کښې

لاس دې بند ژبه دې بنده
ناست یواځې او دیګر
لکه ناست وی وزرماتې
په ما ښام کښې باز یګر

چیه خوله او پټي سترګې دګال حوا کښې ګونګی ناست دی
د ځيل غم په ننداره کښې ډوب مشغول دی صنو بر

هری پور جیل

## ته اوږه

اې د مینې مر ښتې
اې د نو را ور نګ قصې
ښاپيرۍ! ته چابدی کړې
د عمو دو د کو شې

چا وره لو لکه ګیر ه کړه تورتم سیلۍ باران کښې
چاتصو یر د صحرا جوړ کړ دې د سر و ګلو بسما ن کښې

په مین چه شی مینه
یارا نه نه‌ده بیوبار دی
چه‌په غم ارمان بدل کړی
د غه مینه د غه یار دی

که مجنو ن په لیلی ور ک ؤ په مجنو ن ور که لیلی وه
چه فرها د مسکی او مست ؤ شیر ینۍ هم په خندا وه

دا نه مینه نه و فا وه
خوشحا لی مستی ګډل ؤ
په چینجی کښې وزرونه
دلو لکی تو کید ل ؤ

داد سو د ګټې قصې وې بندګۍ قربانی نه وه
د مجنون د زړه مستوړ له د لیلی شوك ثانی نه وه

(خو: ـ) ای د حسن فرښتې!
اې د نور او رنګ قصې
تا مستی بې خودی ورکړه
په ژړا او وسوسې

ای مجو بې بت پرستې! زه یو بحر د تیارو یم
ای د سپینو ګلو لښتې! عکس ستا د ولو لو یم

ای د غرد د شوکې واورې
ستا د شا شګو زه ږ نه وکړ
ز ما بحر د مستوړ دی
ستا نیا ز بین زړګی وړوکی

ته ئې حوره د فردوس ځنا ورزه د جهان
ته ژوندون رڼا او شمع زه تیاره غم او طوفان

ته تسکین د مسلمان ئې
زه یم مینه د کافر
ته په مینه تالا زړه ئې
زه په حسن تالا سر

ته بنیاد او روح د سینه ئې زه موجونه سرسری
ته سرور طور او موسی ئې زه ارمان د سامری

ای د حسن فرښتې!
ته ئې حوره د رضوان
زه بادشاه یم د دوزخ
په لمبو د اوررو ښان

زه یخ باد یم د حزان تورې اوړې د ما ښام
زه مین د بت په سترګو په ساقی یم او په جام

ستا ښینه مینې وفا زه
په معنی د مینې پوی کړم

ستا غمګین رونبان نظر زه
هم بنده کړم همسری کړم

ای د حسن فرښتې ستا غم نه دی سور خمار دی
د خزانه تاجوړ کړی یو رنګین غوندې بهار دی

تا کړه بره د سپوږمۍ نه
د خندا کوکې قصا
تا په سترګو د آذر کښې
عکس جوړ کړ د موسی

تا پتنګ له مستۍ راوړه د نورو سود زهرا
تا د سرو ګلو باغ جوړ کړ په ځیګر کښې د صحرا

تا دژوند تر خواوو له
د شرابو سرور کړ
وژو سترګو د ګونګټ له
د لوڅې غرور کړ

تا خند اور کړه خوب اوار مان کښې وینځه د مینې شوې د غم جهان کښې
تا دیارشوله و کښې خوب ددلد اروليد تا د فراق په مخ تصویر د یار و لید

تا د تیارې د رنګه در نا ښار کړ جوړ
تا دوړو کی ډنډه سیند او آبشار کړ جوړ
تا د شبنم څاڅکی کښې وړ کی تصویر د لمر
کړ د امید دریاب او د مستۍ سمندر

تا د فراق د لمبو رنګ د وصال جوړ کړ
زما د توتو تیارو د زړه خال جوړ کړ
ای د حسن فرښتې سپینې حورې د رضوان
بس تا ورکړ لیونی له امید و نه اوار مان

# صحرا

که په شګو کښي ژوندون وي
که سودا کښي نازا وشرنګ وي
که په ساکښي مستي نه وي
که هلال پيغام د نور
ما ته غوره توره شپه ده
که د ژوند مطلب بل نشنه
دا خپل جوش په بیرته واخله

زه پتنګ ستا په رڼا یم
که دا فر له مسلمان یم

زما واړه کمزوري دي
تیره څکه شو له توره

چه تا ورک کړمه حیوان شم
ته دریاب د شنو چینو ئي
چه تا ورک کړم بیابان شم
دا ګناه زما د څه ده
دا خو ستا د ښیست قصور دی
یا خو واک د بادشاه راکړه
یا خو شپه د نمرود راکړه
دژوندون دي رنګین خوب له
چه ستا حسن پري بندی کړم
که دا او ښکلي ستا شراب وي
که زما ژړا د عمر
که زما همه مستي دا
که زما واړه خو دی دا
زه خوشحاله یم په هر څه چه کوي زما په ځان ته
هله زه د ځان مالک شم
هله مست خو بوڼه راشي
ای د ګل جهان مالکه!
ولي جوړ صحرا کښي باغ کړي؟

ربه بومي څه صحرا له
مامري ورکړه سوداله
ربه مرګ راواه ساله
د خندا د رڼا نه وي
د ژړه غوره له هلاله
بس ژړل دی سو ځیدل دی
دا خپل هوش په بیرته واخله

مین ستا په تور ورنه یم
یمه ستا د نور ورنه یم
جوړ ی ستا، ستا د کماله
چه شوه ور ده له هلاله

چه تا وینم انسان شم
زه پټی د لوزوندو
چه تا ښکاره کړمه بوستان شم
چه زه چغي شم جانان شم
چه زه غم شم بیابان شم
او یا صبر د فقیر را
او یا خپل ماه منیر را
یو ښیسته شاني تصویر را
دا سي لاس دا سي زنځیر را
ده دا چغي ستا رباب وي
یو لمحه ستا د شباب وي
یو حباب ستا د سرور وي
څاڅکي ستا د مست غرور وي
عجیبه زما جانان ئي عجیبه زما ارمان ته
چه خپل ځان در کړمه تا له
چه ګوټ و لړم سنا د خیا له
ځواب را ستا د جماله
قیاب جوړ کړي د ګلاله

ولې ولې ربه ولې ددې ولې خواب شه دی ؟
خنکه خندهای جانانه! اغزی شه دی مضراب شه دی؟

ای د لوزې تنده ربه! وک جام شه دی کباب شه دی؟
ای د مرګ اوږ وند مالکه؟ مرګی شه دی شباب شه دی؟
اې دږوند آخر جانانه! ژوندون شه دی حساب شه دی؟
اې د تور و تیارو خانه! شه معنی ستاد رڼاده
اې د مرګ او ګور خاونده! شه رنګینه ستا خندا ده

## شه وچه هیڅ نه و

شه وه چه هیڅ نه ؤ نه صباؤ نه ماښام ؤ
نه رب د چارب ؤ نه بنده د چا غلام ؤ
بس یو سې پایانه عشق ورک په خپل خمار کښې
خوب د خپل وصال ؤ
په ښیسنه شوندو دیار کښې

## عجبه فلسفه

په دې تال کښې خو تول زه یم خو دا تول کړلی جنون شی
شومره زه یم شومره سور دی دا قیصه کړلی مجنون شی
په دې ګوتو کښې مې ایښی تول خو بوه د صبا دی
دې غبار کښې د بوالوه د قلا د محبوبا دی
مابندوته شروع کړې در ښا اونور قیصه ده
د مجنون او د جانان دا شه عجبه فلسفه ده
زړه مې وا چاوه په تال کښې دجومات کوشې له لاړم
د ملا په ښو مې کیښود ماوې دامې صدقه ده
دا چه شومره زه بوهیږم په «طه» او په یسین
دا چه شومره ښکته تلی شی په سجده زما جبین
دا چه شومره اخلی نور دازما خاکی وجود
دا چه شومره زما ژبه شی شکلی انګبین
ملا مخ زما نه وا ړاؤ وې داشه دی ستا نالی کښې؟
نه پولاؤ دی نه فرنی ده نه حلوا نه فالوده ده

وې ئې شرعه ظاهر ګوري
دا د رب سره د مینې
ویره و پسره د قهار رنه
د جنون او د جانان ستا
زړه دې کینږده په سینه کښې
ستا شراب د لره حرام دی

✡ ✡ ✡ ✡ ✡ ✡

ما خپل تال ړنګ د خوبو
وړوکی لا لمې را اوچت کړ
ما وی ای د ښوا ویدو
دا ړالیه ز ما قبوله
قاضی کیناسه په تخت خپل
په بولاس ئې تو په کینبوه
تله ئې پورته د منطق کړه
بوخوا شو رؤ کمزوري وې
یو خوا عقل ؤ د اېل ؤ
بل خوا پروند غوندې تالاش ؤ
ماوی د الیو توب وا خله
ما وې دا ز ما حما ر
ماوې ای د انصاف ره؟
ما وې اې دتول امیره!
قاضی سترګې کړې لې ټې
وی افسوس زمانه ورك دی
زه خو زور یم د اسان
مادی سپین او تور اخستی
زه تور رو ینم او سپین وینم
دغه تول ز ما امید دی

او ظاهر ته فاسق ئې
تار اخستې شه قصه ده
دایمان اصلي حصه ده
شه مهمله فلسفه ده
دلته رنګ او لباس را وړه
شربت راوړه ګلاس راوړه

✡ ✡ ✡ ✡ ✡ ✡

د قاضي دربار له یو وړ
تار خا ئې او ما رله یو وړ
ای د تورو سپینو خانه
په نامه کړه د جانانه
په سپین سرئې د ستار کینبود
په بل لاس ئې حصار کینبود
یو خوا دی یو خوامې تال ؤ
بل خوا ژمې ؤ کمال ؤ
نه مستي وه نه جلال ؤ
مستانه شاسې کولال ؤ
اوخپل عقل پرې تاله(۱) کړه
د خپل علم کتاله کړه
دا د مینې غزل ګوره
دا ئې تو له تلل ګوره
شوندې بندې مخ پریشانه
دا چه ته غواړې ز مانه
زه سرور د آدم نه یم
د مستیو له ګلستانه
بس ز ما د شه قصه ده
دا تلل مې فلسفه ده

(۱) تا لا۔

ما خپل زړه لا س کښېږ ا غونه کړ
د ما ښا م تیا ره کښې ورك کړ
او س بوزه یم بوا ر ما ن دی
وړ و کی گل ا و لوی خزا ن دی
ما هر گی ته شر و ع کړې
د جنو ن ا و د جا نا ن د ا

تو ري شپې ا و غم له بوړو
د صبا شبنم له بوړو
د جا نا ن د شا ن قصه د ه
بو ا میډ بو تلو سه د ه
د ژ وند ون د بنیست قصه د ه
شه عجبه فلسفه د ه

بهگنوتر (هزاره)

## د توت ښاخ

که دی سر که سرور،نو دی پا ئی په غم
دارحمت ا و بخښل، و ر و رد ز و ر ا و ستم
ما یو سی ا و مستی، د و ا ړه شا ل د صنم
چه سر ډك وی د شه وا ړه ما ل د صنم
د ا خند ا د یقین ا و د ا شک د ژ ړ ا
د ا تیا ر ه د جا نا ن د ا هلا ل د صنم

بند ه شه د ی؟ یو ستا ر دی
هنگ اوشرنگ اوتنگ دده دی
مجلسی چه په خند ا شی
غبزو نکی چه بلبل و ی

د توت ښاخ د سیمو تا ر د ی
د پل لا س د پل خما ر د ی
د ی س شو ر دی او تقا ر د ی
دی هم گل دی هم بها ر د ی

چه منصو ر پر ې گو تې کیښ د ی
همه د ا ر ، همه خما ر د ی

عطر تو ل د پل د خیا ل د ی
د ی ر و ان کاروان د پل د ی
دی مجبو ر شا ن مسا فر د ی

دی یو گل و ی بها ر نه د ی
دی ار ما ن دی د لدا رنه د ی
منز ل نه د ی او لار نه د ی

دی غلام دی د ر نگو نو
خو باد شا ه د خما ر نه د ی

دپل خیا ل دده تقدیر
ناز ا و ر از آ وازد پل دی

دی نه سپین دی اونه تور
دده شرنگ او دده شور

شپه او ورځ دده تو ل
وصبا او ما ښام

د د ه هــــو ش رغـــو ی
هــم ســـا قــی هــم خیـــام
د ی نظــر د ی ګلــو نه ا و نــو ر د ی د بل
دده ستــر ګې خوښیــــت او سرور دی د بـل

بهار پور

## بس دی افلاطونه!

بس د ې افلاطونه! فلسفه د ې سنبال کیـږ ده!
غونډې کړه دامونه خپل، او نهه د ې جال کیږده
عقل عقـل عقل څه د ی کفر کفر کفـر دی
عقل چه ئې ګیر کړ ی د ی غلام غلام زما
زه ئې چـه ر ا ونیسم نوو پړو کی د ی زمانه
لاندې کړم له پښو شنګه د سر مقام زما
پمه قربنه کړم وینځه کړم د بی بی هوش د کور
مرګ کړمه مالک دښیست د مینې او د جوش د کور
ور کړم پرونه ښناله ټول اختیار در نګ او هوش د کور
لوږه ددلال شم ا و خندا د ګل فروش د کور
بس دې افلاطونه! خپله پول پېلې پورته کړه
دا مندر دحسن دی ته مخ دعقل کورته کړه
دلنه ټول بیلات بیلات د ی نشه دی ګټل ګټل
دلته ژوندور ګول دی جمع ګول راغونډول نه دی
دلته مینه تش یو ښکلی سیند کښې پرو بیدل نه دی
دلته ژ و ند د ا ستان د غم ، خند ا ګټل ګټل نه د ی
ز ر لکه معنی که د هلا ل د ر نیا و کړې ته
نشته د ی په تا کښې دهلا ل بخر ی یو
زر زره رازونه دې کوهی کښې ښکاره شو ی د ی
نه دی ښو لی تا ته د ا ر ما ن کو تري یو
د لته پر بر خو بو نه د ر نیا لید لی شو ی د ی
نه د ې ښو لي تا ته خپلې مـړې د لبر ې یو

ته نیو لی نه شی لیو نتو ب ته جلا ل پر یږ د ه
کینه ا .فلا طو نه ! فلسفه د ې سمبا ل کیږ د ه

تا سره د ه تله د سیر و نو د منو نو
د لته کښې بحر. نه د ی او تور اودر ا نه غرو نه

ته ئې بیو پا ر ی د عطر و ګوږ و د چر ګا نو
د لته کښې پر تې د ی و لو لې ا و ا مید و نه

تا له یو قطر ه شر ا ب د ر یا ب د تو رو ز هر و
دلته کښې پر ا ته د ی په زر ګو نو ډ ک خمو نه

ای دنیا څو یه د لته لږ ې ا و څو بو نه د ی !
ستا تله قطر ې تلی او دلته دریابو بونه د ی !

ته د أ د م لا س ئې دآ د م ستر ګې ا و سر
ته دده پوشاك ، دده لبـاس ، دده بستر

ته د ده و جود ، دده آ ر ا م د د ه بهبو د
ته د ده فا نو ن د د ه آ ها د د ه ا فسر

د لته تو ل تال د ی ستا د تلې زه ا و چت
غر و نه د عقاب د ی د بلبلې نه ا و چت

ستاسترګې روښانه دی څوز په دې درو ښاو توردی
تا کره روښا نه سوری نه دی اور دی اور دی

دل ګاه منطق کښې یوساعت دوصال کیږده
څوی شه د منصور په تور ډیران کښې هلال کیږده

پهاړ پور

## جوارګر

په همو ا ره لا ر کا روا نو نه ځی
او په غرو نو روا ن خط وخال سړ ی
څو همو ار ه لا ر ځنګ زه وا خلمه
شی ګا نه په کدو او په دال سړ ی

دبها ر غور ځنګونه او څوند اور ننګ په شکر و تې ډ یران قربا ن کړمه
اېږ آرا م له د څا ن د ر قیب سره زه ګانه بې څود ی اوجانا ن کړ مه

کهٔ د توري تیاري لا توري شی — او جهان د په قار ددو زخ په شان
او هر څا څکی د رنګ د تیار و نهٔ کړ ی — هر ه ساد کبا بو د سیخ په شان
زه به سه زاو پر وازور نکړمه
او ملا ادا یا زور نکړمه

نیت مې کړ ی د کور د جانان دی — څه خند قوی څه شپول، څه د یوال
داو مې ایښی په ګور د سرور دی — څه وی زر، څه وی سر، څه وی مال
یو خوا سپینه سپوږمۍ در یا دچل — بل خوا سر او سرورا و هلال
ښکلی مین به په بل د لبر شی څوک
ښکلیه کیږ دی به پوزه به خال سړ ی

لکه سر چه په خپله قربان کړی څوک — یا د لور په سر جمع کړی مال سړی
لکه خر ع چه د بل چا په زر و کړ ی — خیل جانان په ما نیام دوصال سړ ی
دادی ز هر، دا ز هر درو ح دی
خونامه ورله ور کړ ی د مال سړ ی

د هو ښیار ولاړي مې ټولې زده — خو زما د شان دغه لارنه ده
زه د زړ ر و صحر ا اوار مان یمه — زما بخت کښې کوڅه د ګلزار نه ده
زه چینه د ژوند ون د خو بو نو یم — لا مې مو ند ې سینه د دلدار نه ده
زه یم څا ور ه خو د یره بې تا به یم — ما مو ند لې لمحه د قرار نه ده
تا لا کړ ی مې ژ و ند هم غرور دی
داو مې ایښی په ګو رد سر و ر دی

غورسر

# جزا

خلق ولی را تـه چـه شتـه دی — زړه مې هم والی چه ئې!
خو جهان دې دا سې ښکاری — لکـه بې ما لګـه کـو ر
ستاو ځپلي خولې د ښمن لـه — خـو شحالی، مینه، آرام دی
ستـا آشنـا لـه تنها ئـی ده — تهمتـو نـه او پیغـو را!
کهٔ دې زړه کښې هم څوک یاد کړی در به در خاورې په سر شی
ستاد ښمن خان دځا نـا نو ستا آشنا ز یر و ز بر شی

ستا ر ښتیا ستاینه او مینه — پههمهوو کښې تاوان دی
ستا تالاش یو لیو نتوب دی — ستا یاري دغم طوفان دی
امتحان خو مره سنګین دی — ویر کمزوري ستا اسان دی
د لو ګی په بنیاد و نو — جوړ دښنو ګټو مکان دی

ستا خلیل د ښو دلاسې دنمرو د دغلام و ینم
دخیام لاس کښې کچکول دی دده لاس کښې جام وینم

خا نه امه مې جنګوه نور — هسې نه چه بګهلې شم
چه خمار او سرور ور کړم — دا سرې تمې مر ئې شم

ستا ملا والې په چغو چه تش سخات اوزکوت غواړی
حوښ دې دغه غه حیرانو نه یوخ او سپین شان جومات غواړی

وئې قانون دې دمنات وی — نه تش نوم دمنات غواړ ې
وا ئې نه غواړې جنون ته — تش رکوع او آیات غواړې

(خو): ستا جهان ملر نګې ښېی ستا د پټوستر ګو خیال
عجبه دې جرم اینې په حو بو نو د وصال (۱)

ته په د یک مې رضانه کړې — نوم ارمان او عزت غو اړ ې
د مالی نه زیږ ګلو نه — دفا رون نه دولت غو اړ ې
د مین نه قو له مینه — دمغرور نه غر و رغو ا ړ ې
ا و در ند نه ښا نکونه — د مستیږ او سرور غواړ ې
د غنې نه هشنغر کښې — او چت غرونه دطور غواړ ې
د ګدوري نه حیل ځان له — (د)وریتولو ، تنو ر غواړ ې
ستاو کیل وائی په چغو — چه خیرات اوز کوة غواړ ې
ز ړ ې مینې د پنجاب — اوږ دې ورېږې دسوات غواړ ې
سپینه ګو ړ ه دشوالګرې — تماک و دش سوې غواړ ې
او مرید کره غتې پیر له — ښکلې ښځې نو ې غوا ړ ې
سا ن ځابون ګو ړه طالب له — ا و ملا له ر و پۍ سپینې
په بدل کښې محلونه — معشوقې فر مې مهینې
ړکې جا مو نه دشراو — په عوض دې کې ږینې
دیزید خونی پالنګ کښې — ړکې لیچې نرمې سپینې

(۱) ( لن تنا لوا البر حتی تنفقو مما تحبون ) ته اشاره د ه .

لیونی ته بس ارمان کېږي ‌ ‌ ‌ ‌ شی رنځې سترګي مهیني
څومره ګران سړ کېدي جوړ کړ؟ ‌ ‌ ‌ ‌ دعوه د ارله ستاد میني

ستا ست داسې سپېڅل ګړی
لکه بې مطلبه اور
ستا جهان داسې ورانیږی
لکه بې مالکه کور

غرسر ډېره اسمعیل خان

## خندا

ځان تخومه ډېرخو ډېر افسوس دی خندا نه راځی
دي غریب کېږی (۱) کره سایه د هما نه راځی

د ه ته ښا پیری: ه پری هله چه لیدی نه شی
غوږ په سېی حرام ، دخره ډیران له ګیا نه راځی

خدایږو که مجنون دځه مجنون وچه صحر اله لاړ
پوه چه شو په دی چه په محل کښې لیلی نه راځی

لاړو لیونی دي ور ک شو تاچه حکم ور کړ او
چه کورته درنګونو به څو کا له رنیا نه راځی

نن د سامري سره تهیکه د جوما تو نو ده
ځکه لیو نی له غتې پټکی او قبا نه راځی

ځکه خوغنی لېز په ګیله شانې نصیب ته وائی
مه وایه ما مړه چه نن تیر شو صبا نه راځی

ستاعجب جهان څه بې اندا ز څه بې امکان دی
یودخندا مړشولو او بل له خندا نه راځی

یوخو ادي نیارو دښاپیرک حوله مړه نکړ له
ملخوادې چرګ مری په دې ارمان چه سبانه راځی

یوسیلی راو چت کړ د دریاب په مینځ ګې وو یشته
دیخوابل تړپیږی چه یوګوټ دهوانه راځی

لا ړمه ، بوړا شوم ژو ندیوتوقه نه ګنمه
ځان تخومه ډېرخوډېر افسوس دی خندانه راځی

پیاړ بور

(۱) د کښت ساتونکی •

## رباعي

زړه مې لګيا دی سوته مې ګټ لګوی
ور له د هوکه ور کوی په اګو بګو
وائي پاسته ګلو نه دی اروان
پروانې مه کړه که اغزی ګلک وو

خان پور

## سپېده

هغه ژوندون وایه
چه وی یو نورا ورنا

د ګک دخو بو نو خندا
خندا او شرنګ شرنګ

هغه سرور وایه
چه وی دو خت بې پروا

خوار ه په سردفه یر
شا لو نه رنګ رنګ

هغه بهار وایا !
چه مې مستي او سخا !
په زیړو ګلو باندې
مالیار کړی تنګ تنګ

خوروا نه شوې ده او نه به وشي
چه دومره نرم او ښیسته به ښه شي

جنت به نوم شي یو مې مطلبه
شي به یکه خوازه او ورک ترا حه شي

سرور به ډوب شي او خنداور که
څکه چه غم او ژړا به نه وي

رنګ به لو کې شي او ځواني خاورې
وا ړه به سود وي سودا به نه وي

**چه ځیکر موږ نو ارمان ورکشي**
**چه ارمان ورکشي نو ژوندون ورکشي.**

چه صحرا نه وی په ستر ګو رپ کېنې
لیلی فنا شي ، او مجنون ورک شي
په شپه او ورځ کښې ، وخت او نظر دی
واړه لیده د بنده هم سپین هم تور
د ده ثیارو کښې خبر ړې د نور دی
شته څکه تنګ او شرنګ چه شته دی شور

یاره دا ژوند به دی پکښې خندا او ژړا
توره تیاره او رڼا ګلو نه رنګ رنګ

خو بیا هم زه غواړمه ژوند د ځوانۍ او رڼا ؟
ډک د خوبونو خندا خندا او شرنګ شرنګ ؛
ولې دا زه شې ګولی د ښیست او نور آقا ؟
چه دی سپینې کښې ګیږدی لالونه رنګ رنګ ؟

بهار پور

## ګټ ماله

(یوخط روښنته)

لاس به مې ور کړی وی، او پښې به مې ور کړې وی
خو مینه، مینه، مینه ما د ر ګړې بس یوتا لـه ده
دې باز به په ډیروغرونو کندو پرواز کړې وی
خو جوړه بس ستا ستر ګو کښې ده د خمار جاله ده

سل ځله که ورک شی سما د ګوره ور کیدی نه شی
واړه رنګینـی دده چه جوړه ستاد خیاله ده
د ور که میخانه د جام ساقی دی که خمار دی
د اواړه مستی خوتر ژوند ونه دمشاله ده

سرې شونډې او تورې توره شپه کښې دواړه تورې شی
ښیست دشال به دې دی چه لیلی ښیست له شاله ده
ته که لاړې رنګ سراو ځوانی به واړه خاورې شی
جام کښې د امستی واړه دمینې د کو لاله ده

چونګ خاوره کوزه شی باډیوه شی او یاجام شی
پړو کې غوندې سر کله قاروون کله خیام شی
شوم نصیب کړی جوړ تو ره پنجره د رنګ محله
مینه اوغرور کله ساقی کله امام شی
حسن اوو صال یوته بخمال شی او ګلو نه شی
یوتـه سـرددار بـل ته راښکلی ول دد ام شـی

ستر گې شونډې خاورې خاورې لرې د کماله ده
مینه مینه مادر کړې بس یو تا لـه ده
ماخوستا په پښو کښې خپل لالونه خواره کړی دی
ماخو فقیری قبولـه کـړې ستـاد سیا لـه ده
ما خپلې مستې ستا په غمونو قربان کړې دی
ما رنیا د شمعې قربان کړې د هـلا لـه ده

پښې او لاس مې څـه دی داخوخاوره دویران دی
داستا غنی نه دی دا د خلکو غنی جان دی
دا ستا د گلونو ښاخ مستی د بهـار نـه ده
دا شاړې شودیارې سور سادین اوچ بیا بان دی
دا تر خه سایه ده د غضب ده د نفـرت ده
دلته مـړژونـد ون دی مړا میـد مړار مـان دی
هغه خا موشی ده دا چه ور کـه د بلاله ده
مینه مینه مادر کړې بس یو تا لـه ده
ما کعبـه رغـولې ستـاد مینـې او جمالـه ده
حوره زما ناسته پـڅـه احـوا ستاد شـاله ده

ستا شراب دخاورو له کندو له جوړی کړی جام
ستا ستر دې کړی جوړې دحر چو کی نه خیام
تا د خاورو کټو نه سینا او حرم جوړ کړ
مینه وه دا مینه دخنزیر نه ئې آدم جوړ کړ
ستا کټ ماله جوړه دغنی د گل گما له ده
مینه مینه مادر کړی بس یو تا له ده
پهاړ پو ر



# جلال

چه زه غواړم دایرونه مستی سره ګلونه جوړ کړ مه
دسرو او ښکلونه سرې شونډې دړړا سرونه جوړ کړمه

زه خزان تیاره کړم ړو به دامید په سمندر کښې
دکو نجکونه لالونه دغولو پلونه جوړ کړمه

چه داروح مې په ښکار وځي د رنګونو دخوبونو
که نور نه وی دتیاروزه رنګینی نورونه جوړ کړمه

چه دښیست شم زه لیوا له دصحرا هره ذره کښې
په در هاو بوستانونه په لدها ګلونه جوړ کړمه

چه ره وزی دارمان شم د پسرلی په سپین صبا کښې
بې حسا به ما ښامونه بې پایان غمونه جوړ کړمه

تور او سپین زما د سترګو کله تول کله تلل دی
شپه او ورځ زما نظر دی ور ګول دی او موندل دی

که خندا ده که ژړا دا ځیګر مشغولول دی
که وصال دی که فراق دی خپل سرور ته ګه یدل دی

چه زه مست شم له ډېرانه سره دښست ګلونه جوړ کړمه
دسرو اوښکونه سرې شونډې دړړا سرونه جوړ کړمه

چه زه نیت دګټې وکړم د پریوتی د شکست نه
دفاتح دشونډو کبر او د سترګو غرور جوړ کړمه

دا چه زه ځان لره تخت درنګین بادنه ودان کړمه
دغلام امید بدل د باشاه په دل سرور کړمه

چه خپل نوم ذرې ذرې کړم ترې نه ډېرنومونه جوړ کړمه
چه زه غواړم دایرونه مستی سره ګلونه جوړ کړمه

دا چه ته ئې او دا ته ئې دا چه ستا مستی رنها ده
دایم زه دا بس یو زه یم دا زما ژړا خندا ده

د ملا خبرې پرېږده ما مله ستا او زما ده
دا داستان داوږې نه دی دا قصه دعشق او ساده

دې زما بې سره ژوند کښې ستا حسن او کمال دی
دا زما کمزورې سترګې ستا د زور جاه و جلال دی

بهګوتر

# مسافر

دژوند مقصد دی یو کمال دمنیې
داتوري لړې ما ښا م کولال د منیې
دا سره مستی د کفرچنه دځان دهوش
او په ارمان کښې دی کمال دمینې

دعقل خور جمال یو خیال دمینې
داارمانو نه تلاش یو جال د منیې
ویښې کښې بحر نفرت دالال دمینې
کمال دا نسا ن جمال جما ل د مینې

مینه خو ب د ډ یو ی زړ ه کښې
خوب د ړ و ند کر ه ما ښام کښې
دخـزا ن پـه مابو سـیه کـښـې

د رنړاو سو ځیـد و د ی
د صبا ر نیا ر ا تلو د ی
خوب د ګل د تـو کیدو دی

د مر ګی پـه تو ر و طن کښې
سـا ز د لـمر د ختمید و د ی

ما له ستر ګو تپو س و کـړ
ما لـه ړ نـډ ه تپو س و کړ
ما د ګـو تو نـه تپـو س
ما و ی ای خما ر ی ستر ګو ا
ما و ی ا ی زهرار نـګینې ا
سـتا مستی حسینه څه د ه

حسن څـه د ی مینـه څه ده؟
عکس څه دی آئینه څه د ه ؟
دنـر می د تـلا ش و کـړ
د ا خـنا ا ر نـګینـه څه ده؟
له خیال نو ر ه یې خبر ي
ستا خند ا مینـه‌څه د ه ؟

هغې یـې پا یا نـه حسن
ماتـه داپه ار مان وو ې

ژوندون څه دی ځا ن مو ندل د ی
ژ وند و ن څه د ی یو تالاش دی
د ا ر ما ن بې تا بی و ا ړ ه

ژوندون څه دی ور کیدل دی
د ا ر ما ن پو ر ه کو لو
په ا ر ما ن قر با نو ل د ی

ژ و ند و ن حو ب د ی یو بې تو ا نه
د تـیـما ر ي ا و د ر نیـا
بند ه هغه مسا فر د ی
کو ر ئې با غ لا ر ئې صحر ا

بهـګنو ر



## بې غیرته پښتون

تو ر ښاما ر منجیله پروت د ی د خما ر په خز ا نو
د پر و ن غلام ، باد شا ه د ی د صبا ، د لیو نو
هر پښتو ن له و یر ې ر ېږ ي ورك شو نو م د پښتنو
دسر و ستر گو غیرت و چ شو
همت و ر ك شو د سینو

**ای پښتو نه ! ما ګڼلې د ا نسا ن دشان کمال**
**ستابې سره سر کښې نورؤ، ستاپه توره کښې هلال**
**ستاپه مست حیوانیت کښې ددریاب دچپوزوروو**
**ستا په ز هر و کښې ز مزم ؤ**
**ستا په قهر کښې جلا ل**

مابه وی دزمری ظلم ظلم ، نـه دی دژوند شان دی
مابه وی عقاب ښـیته دی ،چه دنازښـکارئې ارمان دی
مابه وی چه کله کله ، ځکه تـه بې رحمه ا ور شې
چه رو ان ستا په ځیګر کښې
سورد نـګـ غرور طوفان دی

ای پښتونه ستاهر بدله ،مابهـانه جوړه کړ ه ښـلې
که تـه توردا ور، صحر اشوې، ما کې دی در کې بلبلې
ما ستا سرا وچت غو ښتلو ، دامې نه کاوه پر و س
چه دا سر به څه ا و چت ؤ
څنګه څنګه ، ولې و لې ؟

داپنځه کاله مې تیر کړه، جهنم ز ندان پـه اور کښې
زما سر اوچت صبا ته ستا سر ښکته په پڼو ر کښې
شل شرمونه درنه تاړدی پـه کښې ته داسې خاموشه
ځکه پروت چه دله مړی و ی
راغو ندشوی غوندې گور کښې

ویر ه و یر ه په ځیګر کښې ، د بچی د سـکندر
په پنجر ه کښې ر ېږ ر ېږی د عقاب ا و ز د ه وزر

لاندې ناسته‌دی سره بازونه وزرې‌سترګې اوتش‌سر
او د پاسه پرې ګنجور د هما تاج مې په سر

ای جنونه دشرابو اې بابا دلیونو
دامغروره‌سرمې‌ټیټ‌کړ‌ې‌غیرتوپښتنو !!

خانپور

## دامکان‌اولامکان

چه آدم تنګ د قسمت شی په خپل لاس کښې‌ستارو اخلی
چه لېز نور هم لیونی شی نو شمشیر او آبشارو اخلی
چه حوا د مرګ له ویرې د صبا په تالاشو ځی
د ګلو نو رنګ راغونه کړی
د سرو نو شر نګارو اخلی

همه رنګ دی د آدم د آدم د زور امکان
څه دی کور او لامکان ګل غلام یا د شاه خزان
که جانان که بت که رب دی زما تنده او یمان
د امکان او لا مکان د واړه جوړه زما دځان
سره ګلونه سپین امام
ابتدا او اختتام
ګل بچی دی د پسران
په پسرلی کښې پټ خزان

تیښته ویره او شکست د د له دغه اواز دی
نر غازی له شکست نشته همیش فتح تل‌برواز دی
ګل‌چه‌خاوری‌شی‌هم‌ګل‌وی ګل‌چه‌سوروی‌هم‌ګلاب‌وی
یو مهتاب او زرو ریڼې
بیا هم سپین خندان مهتاب وی

او د مینې په میدان کښې سرپایلل‌جانان ته تلل دی
منه هیڅ د لیونو ده ټول بایلل هرڅه ګټل دی

دلته پوب په ورو کی جام کښې — د کعبې او چت منا ر؟
د لته سا با یلل خما ر — دلته ځا ن مو ندل خما ر

د ا مکا ن او لا مکا ن
د و ا ړ ه جو ړ ز ما د ځا ن
د ا جا نا ن او بت او ر ب
ز ما تند ه او ا یما ن

خانپور ۱۹۵۲

## قانون

ز ه خو نه و ا یم چه نشته — ز ه خو و ا یمه چه شته د ی
خو د نیا ئې د ه عجبه — او قا نو ن ئې عجيبه د ی

ښکلې با غ ړ ک د خو بو نو د ګلو نو د نو ر و نو
د ر و ا ز ې ئې کله د ا ر و ی کله د ر د کله صليب
او چت تخت او پاس پر ې ناست دی یو غلام دی د غمو نو
چا له تخت د چنګیز ور کړ ی او خو بو نه د غر یب

کله سپی له خو له کښې و ر کړ ی — د شا هین شنه و ز ر و نه
کله ګله کړ ی په ړ یر ا ن — د نر ګس مهین خ و بـو نه
یو ته سر و شو نډ و کښې پټ شی — یو ته پټ شی په صحر ا
کله ستر ګې د کو تر ې — په سر و ستر ګو کښې د با ز
کله سو ر طا لم عقا ب شی — په با ز را و لی شا ه با ز

ز ه خو نه و ا یم چه نشته
ز ه خو چغې و ا م (۱) چه شته د ی
خـو د نیـا ئې د ه عـجبه
او قـا نو ن ئې عـجیـبه د ی

خانپور هزاره

## آسره

بنده څه دی؟ بې هوشه ځناور دی
بنده څه ئې؟ ا رام ځان له ګور ی
د ی تا لاش د د ه د سا قی خند ا
د کعبې منا ره ، ښکلی ستو ر ی

(۱) وهم

کل منطق دده ، فلسفه دده     یو امید یو ارمان یو اسره دده
ددې لوئ دریابت نه چاپیره ده     کناره دده ، کناره دده

که ئې سر د عرش پورې ولگی
پښې ئې دوبې وی دغبار په مخ
داخو دی دڅانه ورک شویدی
د جانان په مخ ، د دلدار په مخ

کل مذهب دده ، کل ایمان دده     دا دی رنګ او خندا او جانان دده
د امکان دده لا مکان دده     دا څه ور که ، څه توره قیصه دده

د صبا تالاش د پرون ارمان
یو امید ، یو ارمان ، یو اسره دده

خانپور ، هزاره

## دبوډی تال

تیاره ، تندر ، ورکیدل دی     زه اتوم د بوډی تال
د امید نه جوړ وم     کله رنګ کله وصال
زه د ځان کل مرضونه     حېل حکیم یم د کمال
ای زما مغروره یاره!     زه خالق ستا دجمال

دا چه په تالاش لاړم
پوست پراؤ مقام مې ومونډ
داچه زه تېزی د نور شومه
سپین ساقی او جام مې ومونډ

د ایم زه چه کله ګل شم     کله نور کله وصال
کله اور ستاد سر و شونډو     کله ستا د زنې خال
ای زما د مینې جوړې !     ستا کمال زما کمال
د منطق په تور جهان کښې     ورك جنون او تور هلال

تیاره ، تندرو رو کیدل دی
نه بوډی شته نه ئې تال

خانپور هزاره ۱۹۵۲



## درپه‌در

درپه درخاورې په سر، بهاړ پور او بهګنوتر
ځمه ځمه په سفر، کله شګې کله غر
کله تاو کله تیاره وی، کله سوز کله سقر
کړمې تیر ځان له‌بوالځي،دچوړی په‌شان اختر

چه‌امیدله دهو ګه‌ور کړم، ویم‌صبابه‌وی‌بل‌شان
هر صباچه‌رانبکاره شي، ستړی سوی‌ماز یګر
میا با ما به تپوس او کړم دعمل اود جـزا
د الله دمینې رحم په بچوړو دحو ا

**که‌فطرت‌درب قانون‌وې ،رحم‌نشته په فطرت کښې**
**دشهباززمری‌وحشت‌دی‌حسن‌ورګ‌ویرې دهشت کښې**

پـه‌ژوندون کښې‌د کمال‌راز،زوردی‌ظلم‌دی‌طاقت دی
دازمونږ رنګین خوبونه، ځه‌غرور ځه حماقت دی

دا مونږ ځان له جهان ګورو ددې خاورونه‌بهر
ځکـه ځکـه درپه در کلـه شګه کله غـر

د ردا ورغم که نوراوسازوی،ورحیم‌اورحمن‌شته دی
خوبې تول ځه اړولی، اواصاف ئې عجیبه دی

د خزان په شـاو لا ړدی، دګلـونو نه خفه دی
دمنصور نه مره ناست دی، پاس په تخت‌باندې‌شمر
ړندې ستر ګې دبت‌بښې‌دی،ځان‌پایلال‌ستر ګې نظر
ستـاد حسـن لیـونی لـه ، نـه شبقدر نه اختر

ستادنوروزی‌جهان کښې،نه‌سپوږمی‌شته اونه لمر
ستا عاشق په دردلړلی، داغزو تاج ئې په سر
بهاړ(۱)پور او بهګنوتر(۲) درپه درخاورې په سر
کلـه تاو کله تیاره ده ، کله سوز کله سقر

(۲،۱)دازما د بند پدواو نظر بندیه‌دوه‌کلي وو نور به‌دي‌ځایو نو کښې بندی باتې‌شوې‌یم . بهڅور
جیل،هری پور جیل، حیدرآباد سنده جیل خانپور، هری پورجیل کلب،غرسر، تهانه با لې

## ګوډاګی

زما ویره جنت او جومات زما — زماهوش سر سرور مناجات زما
مناری د ګوجې کښې زما پستي — دادمرګ نه بچوم زدژوندون هستي
او د شرابو جام د زمزم چشمه
دا د ځان د نیولو یو دام زما
دا جنون جانان دا مرشد کعبه
د خپل هوش نشه ګو او یو جام زما
ګوډاګی ماجوړ کړی خپل ځان له دی — سره لمان د یار عبادت سرور
ما بند و نه اچولی طوفان ته دی — دا مید ګلزار او قلاد نور
ماد ,, مرګ ،، فاتح د ,, زوال ,, آقا
دې شکست له بوسان موندلی دی
ما غلام له د سر و زر و تخت او تاج
ما لوګی له مکان موندلی دی
دی زما جنون دانبایست اویار — داسر ورزما ددې تلو غبار
داجنت زما دارمان تصویر — اودوزخ زما ددردو تو خار
زما ستر ګو کښې رب او ایمان دی
زما در د کښې وصال او جانان دی

خاپور

## مرګ

ساز داسې آوازدی ښکاره پټ کړی پټ ښکاره کړی
تورې خنې وا خلی تر ټنه جوړه مناره کړی
قبر باندې شال یو دا طلس د مخمل و اچوی
لاس کښې انسان لمحې له مرګ او اجل وا چوی
(خو ـ)مرګ دې پرده پوش کړی دآدم زوال دهوشه ورک
مرګ هغه خزان دی چه ګل کړی د ګل فروشه ورک
مرګ ګـواه د رب د مینې رحم دانسان سره
مرګ یوه وعده د پسرلی شوې د خزان سره

ژوندیو څاڅکی مینه ده د مینې ننداره کړی
تورې خټې وا خلی نر به جوړه منا ره کړی
ساز د څوا ني غشی دی د مرګ سره د جنګ قصه
داده دانسان د زغرې تورې او تفنګ قصه
داده د غلام د فخر، کبرا و د ننګ قصه
شمع پتنګ نه دی دا دستوري او پسنګ قصه

ژوند د آدم څه‌دی مینه مینه ده دځان سره
خاورې دی آدم‌خاورې‌جنون‌سره جانان سره

مرګ‌لویه نیکی وه چه ما اوکړه د انسان سره
مرګ ستا ګورله یوړه ګڼې وه به مل د ځان‌سره
مرګ هغه نیته چه جانان کینبوه د جانان سره
مرګ پټه نکاح ده د مکان د لامکان سره

مرګ ګڼې د ژوندون د دربار پټه ګناره ده
مرګ مجبوره ځان له د خپل حسن‌ننداره ده

مرګ س یو ګواه زما د ژوند ستا د جلال
ای عجیبه خدایه د بیا رې او د هلال!

ځان‌پور

## مینه

مینه حسن جوړ کړی بیا یې شی مینه مینه
مینه لیونۍ ده، لیونۍ ده مینه مینه

چیرې مې دا خیال و چه ښا ست څوانی نیاز
پټ دی س‌په دوی ګنبې د شوق‌عشق او طلب‌راز

ما وی ؤایاز شیسته، محمود و، د شیستو زی
ځکه د استان جوړ شوی محمود او د ایاز

اوس په‌دې شوم پوه‌چه دشهبازدستر ګو ننګ دی‌دا
بل دانته ګوتره ګړی او ځان ورته شهباز

لوږه لوږه ده دځان مړو لو خوب دی عشق
دادی د آدم او دحوا د ستر ګو راز
مینه جومات جوړ کړی په تیار و کښې د خپل غمه
مینه په مستو رښا یست کړی جوړ د خپل صنمه
ښیا په سجده تیته شی در نه په ګلو و نه
مینه حسن جوړ کړی ښیا پر ې شی مینه مینه
حا ن پو ر

## شمع

محفل له شوه رڼا شمعې له سو زو ر و کیدل شو
اوچاله رنګ محمل کښې پټ پټ ستر ګې رڼې یدل شو

شوه یو له دښکاری مستې د لمبه دچل ددام
اوبل دزر کې ځوی بصیب ئې دام کښې لګیدل شو

شو بو له سره ګلونه ما ښا مو ته او جامونه
او بل ته دغه واړه لو زه تنده ژ ړ یدل شو

او ګو ره انسان ته چه باد شاه د ځنا ورو دی
دی که پرېزو ر و کړی و تی نشی د خپل ځا به
دی د خپل وجود د فطر ته لو ئید ی نه شی
سل ځله که جمع کړی ګلو نه دا یرانه

دی دخپله ځانه دجهانه ورو کیږی نه شی
کله د منبر نه تا وشی کله د جا نا نه

څه و کړی غریب دا په لکه ها ؤ قلا ګانو بند
دی که پر زو رو کړی و تی نه شی د خپل ځانه

دا څنګ به ستا حساب وی ته تلی په کو مه تله
ړ و نده نه د رنګ تول او دګدا تپوس له شله
څه شو رنګ پسر لی له ګل له مرګ ر ژ یدل شو
محفل له شوه رڼا شمع له سو زو ر و کیدل شو

پهاړ بو ر

❊❊❊❊

# جانان زما

نه به تا څه احسان مې د مینې شته
نه به تا څه احسان د وفا لرم
او بادشاه د خندا او ژړا ته ئي
خو دا زه یم چه خندا او ژړا لرم

ستا د سترګو ښایست دی ارمان زما
ستا د روح ملک د حسن جهان زما
دا ستا شونډې چه ښکلې او نرمې دی
دا د مینې کمال او امکان زما
دا چه زه ستا د سترګو تصویر یمه
دا ستا ګوتې جوړ وی ما ته ځان زما
دا چه ستا ملګرتیا ته ما زه یم
پټه دی دې کښې رحیم او رحمن زما

زه به پټ ستا د مینې د جاله شم
خو ښهر دې جاله تیاره طوفان

زه به پټ د خپل سوز د کماله شم
خو ښهر دې کوره ژړا ارمان
بې پروا د جنون د وصاله شم
خو مستې شه ئې «ې» «و» وی شه انسان

څله خلاص ستا د زلفو د جاله شم
چه مې ګور صحرا دی یا کور طوفان

که رقیب د تیارې ورکیدونه وی
ما به ستا له رقیب کتلی وُ
که ښامار هم علاج وی دریغ زما
ما ښامار به طبیب بولی وُ
که بل ګل کښې پیغام د ښهار وی دا
دا زغو ډکې به هم ما کړلی وُ

ما له بس ستا نظر کښې آرام دی
ما ته پروت ستا نالاش کښې دوام دی

نه به تا مې احسان څه د مینې شته
نه به تا څه احسان د وفا لرم
ستا د ژوند او هوس معجزه ده دا
چه ځوانی او مستی او خندا لرم

دا دی ډیرې پا یا نه احسان درب
د ګوګل په پنجره کښې هما لرم
بادشاهی له دې، لو یه به ګومه وی
چه ارمان د خپل ځان مینه ستا لرم

ستا دحسن جها ن کل جهان زما ستا ارما ن کښې خندا کړی هرشان زما
تا نه نخم شم، پا نه شم ، گل شمه ته پټیږ ، ته بهار ، ته خزان زما

کله شی محبوبا د خیا م د رنګ
کله سوی شان هنګ د منصور د چنګ
کله نښتیست او آرام صبا امید
کله توره شی تیغ شی غم او جنګ

کله مینه شی رحم ببننه شی کله زور اوزباتی او غرور او ننګ
ستا هر رنګ یو بې خوده جهان زما
ته پټیږ ، ته بهار ، ته خزان زما
بهکنو نر

## قیدی

څو ک د زړه غلو او نشته
ځا ن له زړه غلو م په حپله
ځا ن له ما ست یمه حپل غم ته
د خپل غم و ا یم مد له

چې ته لري تیر محفل له د مستی او خندا ځمه
چې ته مړه شمعه ر ا خلم خپل مشا ل پرې لګومه
دې تور تم غم او افسوس کښې
ز ه په یا د د مینې پا یم
سوی زړه ته قصې تیرې
د څو ا نیې رنګینې و ا یم
حیدر آباد جیل

## غیرتی

لا له مې د افلا طون دی دتقریر او دتکرار
لا له مې پاس په ستیج کړی دزمری په شان غرار
چه وخت او بخت مې حپل وی هم ئې خپل وی تانه د ار
بیا بس د ده یلغار دی هم په ښار هم په نو ښار
(حو : -) چه وخت دغلبلی شی لاله مړاوی کړی غوږونه
قر قرئې مدام خیبزی په خوار ولګی دستونه

مرز دی بې غیرته پټ په بده شېه چنګېږ ی
کوتر ی د کشمیری دی په کوټه پاس شپه غپېږ ی
وزیر چه کلي وال وی د ده خپل حکم چلېږ ی
چه پورته شي ممبر ته دنوچېر هسې لکه یږ ی
چه غم شي او تکلیف شي لاله څی دبې بی ترخ له
وائی راشه محمد ینه! اوس تیله ور لوه وخ له

سرېټ کړ ی د بی بی دلمن لاندې په ژړ اشی
(وائی) الله دبنیر غوټه ! را روان:ی اوس به را شی
بی بی وائی خاوندنه که د استا بلا ز ما شی
دالاس دې ولې ربی په سلګو دې ولې ساشی
دازېږدې‌په‌لینګو بازدې دی‌بشکته شه روان
پرون‌دې‌خواره ډیروجوړخوړلی شاتوتان

لاله وائی بی بی ته ، د دې نوی وز ر تره
خوسنا دمور دحور دځوی تر نور دی د نیکه
ورځم چه راله و کړ ی دوز یر سره کا ته
څماله خوزور ګی ډیر زیات د و یر ی و واته
ورځم چه دوزیر سره اقرار او ز با ن و کړ م
او ځان له ددې شرنه دو توڅه سا مان و کړ م

لاله غریب روان شي مړاوی شتې مړاوی غوږونه
وزیرته ډیر په مینه تعطیم و کړ ی سلا مو نه
بیاو خوری‌لس طلا فه دوه درې سو ه قسمو نه
(وائي :-) جناب ! مانه معلوم شو هیله ستاسوصفو نه
زما نوم هم کړه لیك دنا بعد ا رو ر جسټر کښې
داسرمی‌اشه مربان‌سناد ملګر و په انېکر کښې

وزیرورته مسکی شی وی بنه ولیکه بیان
چه‌اوسه‌پورې‌سپی‌ومه‌خواوس‌شومه‌انسان
لاله‌غریب په‌بله‌ګاندې دین‌غیرت ایمان
زرلاس‌په‌نامه کینږدی‌وی‌قربان‌شمه‌قربان
بیان ؟ یو بیان څه دی لس به و کړم بیا نو نه
جناب‌ستا په صفت به او کړنکو مه اسما نو نه

ما ښامار یې یو ووائی چه یو بل غریب دووس وشو
یو بل د شهباز ځوی د جنګه وتښتید تپوس شو
یو بل ګلزار ایرې شو، ورک شو خاورې شو بوس بوس شو
یو بل پښتون شو سپک، پوب ئې د پلار نیکه ناموس شو
یو ښکلی سر شو ټیټ یو ننګیالی پښیمان په ننګ شو
عجبه ناکرده شوه چه پښتون په پښتو تنګ شو

نامرده لا لا! واوره یو خبره د غنی نه
پښتو غیرت او توره، په پښتو او غیرت مینه
دا هیڅوک بل له نه کړی، دا هر څوک ځان له کویه
دا ژوندی د روح ژوندی لکه ژوند د وجود وینه
دا هغه فلسفه ده چه خلیل ته ئې اور کړ نور
دا هغه مست شراب دی چه څکلی وو منصور

ارمان دی غیرتی! څه عجیبه دې سودا وکړه؟
د خپلې حیا علم شوې د حیا کوره دې غلاوکړه
چه شپه شوه د معراج تا د قیز و نو دعاوکړه
چه وخت د خنداره راغی تا شروع په ژړا وکړه
یا حیا لره باښا هی یادې شروع کړې بنګړی واتې
لالا! کونی رر مړشی، خوز اری ئې شی تل پاتې
حیدرآباد جیل

## عبادت

د ملا عبادت کسب — یا څیدل او کینا ستل
د حلوا په ارمانو نو — تل الله اکول
د ملا مینه عجیبه — په پیتی مینیدل
او د حورو لمبړو ته — د حرچو کو هڅیدل
د صوفی عبادت و یر دی — سو ځیدل او ژړیدل
د رحمن رحیم د نوم نه — رپیدل او ویریدل
د صوفی مینه عجبه — د زړه ګل مړاوی کول
بې کنار دریاب د حسن — په کوزه کښې بندول

دزاهد عبادت چې دی      سوال منت ژړا کول
په جنت اوږي دنیا کښې      د فایدې سودا کول
د زاهد مینه عجبه      په خپل ځان مینیدل
دریا سپې جو ته کړی      د لړ باله ور کول
د غني عبادت مینه      ځان جانان کښې ور کول
دمهینو ستر ګو شر نګ ته      ګډېدل او خندېدل
د غني مینه عجبه      قول بیلات هیڅ نه ګڼل
دا خپل ځان او جهان واړه      یو خمار کښې ډوبول

## دا ېلم توتیان

چا بند کړي دي پنجرو کښې      د اېلم د سر توتیان

---

چا عقاب په لاس کېنولی      د مړز هسې چغولی
چا منصور په سر واوسپینو      او خوږو باندې غلولی
چا قسمت په زور تړلی      د ګوډې هسې اوبولی
نن د کومې بادشاهان دي      سکندر او شاه جهان
څوک ځیولی(۱) شي کورو کښې      سمندر بې پایان
سلاب چا دي منع کړی      په ... و نو د شنو شګو
دقسمت په کور کښې نشته      شمیر د ډېرو او د لږو
با د شاهي لښکرې ... ي      ... ل د وزو او د تېزو
فقیر ... ي چه فقیر ي وي      با د شاهي ترې شه قربان
چا بند کړي دي پنجرو کښې      د ابلم د سر توتیان
چا سرور په لاس کېنولی      څوک مستی شي سو ځولی ؟
د بهار و لولې څوک شي      څوک د ښو لاندې کولی ؟
که لکونه ژوندي مړه کړي      ژوند څوک نه شي مړ کولی
چا دبوی ... منع کړي شنه ګلونه د ریحان ؟
چا بند کړي ذي پنجرو کښې دا ېلم د سر توتیان
بلبل ناست بندی پنجره کښې      د پسرلی خوبونه وینی.

---

(۱) ځایولی - (۲) وائی

په شپه شم ز یړ میدانونه د نرګس ګلونه وینی
سره ګلاب مست او خندانه د لولو پر و نه وینی

وئی(۱)ر یبارته ر اشه‌یوسه د اپیغام د غنی خان
څوك اچولی شي کوزو کښې سمندر بې پایان ؟

## سزا اوجزا

هیڅ په پته دې پوه نه شوو د سزا او د جزا
تا ته یو دی لو یه خدایه! هم خندا او هم ژړا

څوك شیسته‌خوابی کړی‌خاوري په یو خیال بانديې مین شی
څوك خمونه وینې وڅښی چه په مال بانديې مین شی
څوك غوته‌پهٔ رنګ‌اوتال کښې په‌یوخال بانديې مین شی
څوك مدهوش په‌حق‌اونور په هلال بانديې مین‌شی.

(حوند)سناسپوږمۍ‌هرچاته‌خاندی که زهری وی که بلا
هیڅ په پته دې پوه نه شوو دسزا او د جزا

څوك په پړو سترګو ړوب شی سمندر کښې د غرور
څوك په تخت لکه فرعون ناست دی خاندی په‌سرور
څوك په‌مخکه‌پروت‌ملنګ‌وی یاد وی قیصی د طور
څوك په وینه موړ فمدانه څوك په‌مینه کښې رنځور

پروند قسمت دی فرق ئې‌نه کړی د فرعون او د موسی
هیڅ په پته دی پوه نه شوو د سزا او د جزا

عجیبه ده فرق نشته د غرور او دنیاز
عجیبه ده بیلتون نشته د یرید او دایاز
عجیبه ده انعام یو دی د تپوس او د شهباز
تا ته وایه چغې یو دی که دوېروی که دساز

تا ته‌یو دی لویه خدایه! هم خندا اوهم ژړا
هیڅ په پته دې پوه نه‌شوو د سزا او د جزا

یو خوا سرې سترګې شاهین په‌پنجره کښې‌پروت ژړیږی
بلخوا زیړ سترګی شغال په بخملو کښې لوغړیږی .

(۱) وائي .

یو خوا ننګ مینه اوتوره ورووروسوځي خاوري کېږي
بلخوا چل دهو که دروغ را خور يېږي زرغو نېږي
آستا غټې لاپې څه شوې؟ دقسمت او دسزا
تانه يودى لويه خدايه! هم خنداهم اوژړا

## ماتم

دا خو نه وي غم له جوړ ېږي ستا د استرګي دغم ډکي
چا تې برهرها ړ ئې دافسوس او ماتم ډکي
په ژړا باندې چاره دى، سرې مانۍ ابادې کړې
په شبير و باندې چاره دى، مړې بېړې ازادې کړې
د استا ګوتې د پولادو تش دعا زارى له نه دى
د استا مټې دمړ اې جوړې دې خوارى له نه دى
دا ستا زور پښو او توره، سا د سرې و يې غورځنګ
چه دا ښکلى سر دې ټيټ شي ځو انه ښکارې ډير بدرنګ
پا څه پا څه چچه وکړه سا د سري وينې غورځنګ
ته افت يې ته غضب يې د سور تندر يو ګوزار يې
سا دالاس دقسمت لاس دى، وراول جوړول دوى کا
ستاپه سترګو کښې اجل دى، وركول سوځول دوى کا
د فرعون د کور په شا ئې دا حصار خاوري ايرې كړه
دا مغروره سرتس نس کړه دا غرور ذرې ذرې كړه
پاڅه وښيه دنياته دپښتون دبچونڼګ
پاڅه واوروه شغال ته، د ويستلو توروشرنګ

## پلوشه

زوړ شومه زوړ شومه مسلمان نه شومه
ارمانى ډير شومه حو پښيمان نه شومه



# شاعري

دسگر تو بيخ مې وشکه — سرمې خوږ که په گر و او
د پرسر ونه مې را ياد کړه — بو هم نه دی د ياد ولو
نه ټپه شوه نه چاربيته — نه غزل نه نيمگړ شوه
نه قصه شوه نه بدله — نه ساقي شو نه کوکړ شوه

شاعري هم يارانه ده — نه په زور نه په زاري شي
نه په چل نه په هنرشي — نه په مال نه په خواري شي
شاعري لکه باران دی — کله تند رگړ زهر شي
ناگهانه داسې شرق شي — چه صحرا هم سمندر شي
کله نرم نرم پشم — پوست نازک نازک رېښمين
د نسيم په شان مستانه — د محمل هسې مهين
کله شبه در نه شيمه شي — په اوږده صحرا اوريږی
کله تور باران دږمی — په کميږي نه و دريږي
کله شړ د پشکال شي — چرته لمر چرته باران
عجيبه لکه د ژوند — څه خفه او څه خندان
کله داسې سوکړه راشي — باغ چمن شي کربلا
لا د خاورو وتی نه وی — چه بيا خاوري شی لالا
کاش چه وی زما په لاس کښې — دوروغو فرښتې
مابه هروخت ښکلی ښکلی — سپینې لړي راوستې
هرشپاماما به مې جوړولو — په فله د بوږدی تال
هره ورځ به مې سنبالو — دا شنا د زنې حال
ولې څه وکړم چاره نه — واك دلې اختيار دبل دی
دا په تا مینې سترگې — دد وی نور خمار دبل دی
داچه ته پرې راته حانه دې — دد وی سروشونه ودې حارشم
دد وی ښیست مستی دبل ده — دد وی سرستنگار دبل دی
(اوبس:) دادومره راك هم س دی — چه زه ویم در ته غزلې

ته بېسته په پښتو سترګو راته ګوري غلې غلې
چه سات کړي مشغول شو بیا به څو ز صا بلبلې !
مو نبز له توره او ز ده شپه‌ده
د ی د ئبل دا ډ یو ي بلې

حیدر آباد جېل - ٤ ستمبر ٤٨ ١٩

## تنګ

ما له قصده در و غو تا ته وخوړ و قسم
ي وما ژ بي مې هسې تا تـه و ي صنم صنم

ستا معصومو سترګوو کړ به تنګه ناسې انبار
لکه و نیسی ما شوم چه په خندا خندا ښا مار

ما چه ستا په سرو لمانو قسم و خوړ و ما سېام
دشرابو په نامه مې د ر کړوك د حاور و جا م

ستا معصومو سترګو ته وي لبانی سرګي لید اي
ځکه رر پکښې رو ښانه شوي دمینې ډیوي بلې

ز ه وم غل دد وو شاخکو ناد حسن در ناب ر ا کړ
ما په چل چو تنګ ډ کو لو تاد مینې سیلاب را کړ

تاد خپل ایمان په زور ، زه کافر کړم مسلما ن
زما زړه کښې دي کړل خاوري دتنګی همه وتان

ستادشونډوغلاله لاړوم خپل ځیګرمې پکښې نابله
د حواری اوتنګه جمع قول دفترمې پکښې بایله

جام يې وړی وٌ یو ګوټ له‌ډوب دریاب کښې دسرورشوم
دمنصورو بنه وله لاړ وم لیونی شوم زه منصور شوم

لیونی نه زړ کی نوړ ، ناز نینو موسکو شونډو
غلاله ته به ډا که واو ړیه زړه ئې وچاوده په مسلو

حیدر ا با د جیل ١٢ ستمبر ٤٨ ١٩

# ګډې وډې

یاد مې باندې کړی دی
ځان له سیخکی ور یتوم
نا ست لکه منبزك یم
څوك به ترې ی خدا یه !
خلاص ترې نه په چل شو
ګـلونې پـه ګـلزار کړ
ګـوره کشـمـیری تـه

خیا ل پخوم پو لا و
دز ړ ه داو ر په تا و
جیلخانه کښې په دې سا و
د قسمت د پیشو میا و
لیو نی او نه په د ا و
نصیب بې موسمه لاو (۱)
پـه پښـتون ګـوی د بـاو

کا ل چه شی کو نی ، بغ
هم مر غی و ئی (۲) د ملا و

## پلو شه

کعبه جوړ ه ابراهیم کړه
وایه څوك اوی شوا و چت شو؟

زه جوړ کړی یم ا لله
و ایه و ایه ا ی ملا!

## نقا ب

داچه زه ځان لیونی کړم دازه تښتمه له ځانـه
شیخ با با را تـه لګیادی مسلې کړی د عذاب
زه خودلمه په عذاب م دخپل خوداو داحساس نه
ځکه کله په سجد ه یم کله و څښمه شراب
چه احساس لرم خوز یږم چه بې حسه شم ور کیږم
به طا فشته د سکون نـه همت دا ضطر اب

چه چاپیره نظر وکړم همه پټ او ښکاره زه یم
داشراب دی ماجوړ کړی ماجوړ کړی دامحراب
خودازړه مې پټ پټوالی داهدو کی مې ګرېږی
چـه اخر به څوك کړی لر ې دجانان دمخ نقاب .

(۱) لو (۲) وهې



## شهید



داآخری شعر دهغه ملګرو په نوم دی، چه په غرونو، درو ، په ځنګلونو او کورونو کښې ټول دمینې په رنځ مړه دی ، اوخپل ژوند هوسونه ئې دغې تصور صدقه کړی دی ، دکوم په تالاش کښې چه مونږ ټول روان یو ،

اې شهیده ! اې عاشقه ! اې بچیه د منصور !

په خنداجانان له لاړې ، ډوب په دریاب کښې شوې دنور

نادانان در پسې ژاړی ماشومان در ته مجنون وئی

لیونې در ته پسخیږی اې ایرې د کوه طور !

ننګیالیه ! سردې ورکړ ، دیار پښو کښې دې لوږی کړ

اوس ئې ګوره وسکې ستر ګې ، ښکلې ډکې دغرور

مارا وړی تا له نه دی د سرو ګلو املیونه

د جنت بلبلان څه کړی د دنیا دباغ ګلونه

تا کړې خپلې ستر ګې خاورې چه زما پرې شی روښانه

تا قصه زما د دړد بره یوړه له اسمانه

ستادوینې څاڅکی څاڅکی چه تاتوی کړه دارمانه

ماته سرې ډیوې بلیږی په کوڅه کښې دجانانه

ددنیا تا جونه ځار شه ، سا د بخت او ستا د شانه

دلیلې په زنګون پروت ئې د مجنون شیرې ګروانه

مارا وړی تا له نه دی د سرو ګلو امیلونه

دجنت بلبلان څه کړی ددنیا دباغ ګلونه !



هری پور جیل ۲۰ جولائی ۱۹۴۹ ع

کتاب خلاص شو خو شعر و نه ډیر پاتې شو، خیر بیا به چیرته څه غم و کړو ژوندهم عجب شی دی،
دې کتاب کښې اول شعر داو بو په جهاز کښې په بحر هند کښې لیکلی شوی ؤ او آخری د هری پور
جیل د کوارنټین په یوه چکی، کښې.

په دې منځ کښې چه څه مستی خوشحالی، غم ارمان، امید، و یره، خندا او ژړا په ما راغلی دی نو
د دې کتاب په دې پاڼو کښې موجود دی ولې افسوس دی چه ژ بهمې د زړه هومره طاقت نه لری،
بیان د احساس نه کمزوری دی خو هر څه چه دی حاضر دی، ما د څه پټولو کوشش نه دی کړی
بلکه د ښکاره کولو خواری مې کړې ده.

دا زما د ځان تصویر دی د بر نامکمل او مات کوډ دی ولې دا زه ښه په خوشحاله ضمیر و یلی شم چه
دې کښې چه هر څه دی زما دی. دا زما د دې بې ښکاره او بې مطلبه ژوندیوه خواره ډالی ده چه ما
خپل قام او ملك له جوړه کړې ده، کاش! چه دې کښې د ژ بې د ښایست او د ړوهې د کمال دریا
بو نه ماڼك بهولی وی ولې څه و کړم همدغ ومره مې وس ؤ او بنده د خپله وسه زیاتی په هیڅ
نه دی پړ، که په دې خیالاتو کښې دومره حسن وی چه له ما نه پس هم ژوندی پاتې شی نو زه به وایم چه
واقعی ما د آب حیات چینه و موندله او س دوی ما ژوندی کړی دی بیا به دوی ما ژوندی کوی (غني)



اگر څه هم مونږ په تصحیح کښې زیا ر ایستلی چه غلطی پا تې نشی خو بنده سهوه لری
ممکن ده جزوی غلطی پاتې شوې وی چه هغه به په دوهم چاپ کښې سمې شی نو زمونږ
عذر به گران لوستونکی و منی. «پکتانی»